# څرک



اوولسم کال، څلورمه، پرلپسې ۱۲۳مه ګڼه، حمل –ثور ۱۴۰۰ل، شوال المکرم ۱۴۴۲هـ ق، اپرېل –مئ ۲۰۲۱م

له عسکرو سره د اسلامي امارت غوره چلند
## د ديني او ملي بصيرت ثبوت وړاندې کوي !!

چگونه سياست امريکا
باعث نفاق قومی در افغانستان شده؟



❖ د امريکا زوال، هيلې او حقايق
❖ څنګه اسلامي فکر په ميراث پرېږدو؟
❖ د رواني جګړې بنسټيز لامل څه دی؟

د بهرنيو ځواکونو وروسته
د افغانانو مسؤوليتونه...

د شهيد اميرالمؤمنين
## ملا اختر محمد منصور رحمه الله
ستړې لاسته راوړنې

د استقامت او ديانت لوړ منار
## شهيد مولوي عبدالهادي پشيوال

د اسلامي امارت د پياوړي قومندان
## شهيد ملانېک محمد "رهبر" ژوند ته کتنه

د فساد او وحشت ځالې په تولیدو او رنګيدو دي!!





دهيواد له نوميالي جيد او محقق عالم
## شيخ الحديث مفتي مولوي نور محمد ثاقب (حفظه الله) سره
دده د علمي سير، خدمتونو او تحقيقي لاسته راوړنو په اړه په زړه پورې مرکه

علمي، فرهنګي، ټولنیزه اسلامي خپرونه

# څرک

اوولسم کال، څلورمه، پرلپسې ۱۲۳مه ګڼه،
حمل -ثور ۱۴۰۰ل، شوال المکرم ۱۴۴۲هـ ق، اپرېل-مئ ۲۰۲۱م

**امتیاز :**

**دا متیازخاوند :** دافغانستان اسلامي امارت
دفرهنګي چارو کمیسیون

**مسؤل مدیر :** عبید تنویر

**لیکوال پلاوی :** ډاکټر صابر ، حمید ، جمیل مهرنی
او افضل محمد تراب

**ګڼون :**

افغانستان : ۳۵۰ افغانۍ
پاکستان : ۵۰۰ کلدارې
امریکا : ۷۰ ډالره
اروپا : ۷۰ یورو
یوه ګڼه : ۳۰ افغانۍ ۶۰ کلدارې

**یادونه**

حتمي نه ده چې په څرک کې خپرې شوې مقالې داداري دپالیسي ترجماني وکړي هره لیکنه دلیکوال خپل نظر دی.

تخنیکي چارې: تخنیکي څانګه

پتې :
srak_111@yahoo.com

## لړلیک



بسم الله الرحمن الرحیم

سرمقاله

# له عسکرو سره د اسلامي امارت غوره چلند
# د دیني او ملي بصیرت ثبوت وړاندې کوي!!

د خدای پاک په نصرت او د افغان مجاهد ولس د قربانیو له برکته لله الحمد نن هغه ورځ راورسېده چې نږدې هره اوونۍ یو یرغلگر هېواد زموږ د پاکې خاورې په سینه خپل ولاړ بیرغونه راټیټوي او په چټکۍ سره پښې ترې سپکوي. تازه ایټالیا اعلان کړی چې په هرات کې یې خپل بیرغ راټیټ کړی او له افغانستانه د وتلو چارې یې گړندۍ کړې دي.

له دې سره هممهاله، د امریکا متحده ایالتونو اعلان کړی چې له افغانستانه د وتلو پروسه یې تر ٪۵۰ زیاته بشپړه کړې، خپل زیات تجهیزات یې ورسره وړي او زرگونه عدده نور وسایل یې د تخریبولو لپاره د پنټاگان لوژستیک ادارې ته ورکړي دي.

ایټالیا بیا دخپلو پوځي وسائلو ،عسکرو او تجهیزاتو ترڅنگ دخپلو زرگونو راوړل شوو شرابواوالکولي نیشیي موادو د وړلو اعلان هم کړی.

له هېواده د یرغلگرو ځواکونو وتل د خوښۍ زیری دی، خو د وتلو په وروستي پړاو کې د هغوی لخوا د خپلو ځینو تجهیزاتو تخریبول نوره هم واضحه کوي چې دوی زموږ هېواد ته یوازې د ویجاړې لپاره راغلي وو او پر افغانانو یې پېرزو نه ده چې د خپلو گټو د نه ترلاسه کېدو په صورت کې دې د دوی له وسایلو استفاده وکړي.

د سیاسي وضعیت ترڅنگ نظامي حالات هم لله الحمد د مجاهدینو او هېواد په گټه روان دي. له تیرې یوې میاشتې راهیسې د مختلفو ولایتونو نږدې ۲۲ ولسوالۍ او بېشمېره پوستې د مجاهدینو لاس ته لوېدلې دي. تر ټولو زیات د خوښۍ ځای دا دی چې په دې پوستو او مرکزونو کې پرتو زیاترو عسکرو حقایق درکړي او د بې هدفه جنگ کولو پرځای په جوپو جوپو اسلامي امارت سره یوځای شوي دي. اسلامي امارت هم د دوی تود هرکلی کړی او نازولي یې دي.

د اسلامي امارت پالیسي دا ده چې د امکان تر حده غولېدلي عسکر وپوهوي د دې لپاره چې د څو خاینینو د ناوړه اغراضو لپاره د قرباني کېدو پرځای د تفاهم لار غوره کړي، او په دې ډول خپل دنیا او آخرت له تباهۍ وژغوري. اسلامي امارت هر هغه چا ته خپله غېږه خلاصه کړې او د عفوې اعلان ورته کوي چې له جگړې لاس اخلي او د اسلامي نظام د حاکمیت په لار کې له خنډونو ایجادولو ډډه کوي.

د کابل رژیم په لیکو کې ولاړ کسان باید پوه شي چې د دوی په جنگ او مقابله هیڅ نتیجه او اثر مرتب نه دی، یوازینۍ پایله به یې دا راوځي چې د خپل ځان او کورنۍ ترڅنگ به یې دین او هېواد ته هم زیان اړولی وي. دوی باید ځان وپوهوي کله چې د نړۍ تر ټولو مجهز ځواکونه د افغان ولس په مقابل کې مات شول اودوئ یې یواځې پریښودل، اوترټولو ښکاره حقیقت داده چې دکابل رژیم یومهم چارواکی هم افغانستان کې فامیل اوکورنۍ نلري که لگ حالت نور دترنیگلتیا خواته ولاړسي دوئ به ټول تښتي.

نو چې حالت او تحلیل همدا وي نو بیا د دغه مفسدو او مادیات پرستو بې ضمیره واکمنو په خبرو ولې تیروځي اوددنیا اواخرت کړاوونو او عذابونوته ځان ورغورځوي.



د بهرنیو ځواکونو وروسته

# د افغانانو مسؤولیتونه...

ارمان

په وروستیو کې رسنیو داسې خبرونه او راپورونه نشر کړل چې د امریکا د متحده ایالاتو چارواکي په پام کې لري، افغانستان کې خپل میشت پوځیان تر راتلونکي یوولسم ستمبر مخکې وباسي، د ځینو منابعو وینا ده: چې امریکا اراده لري راتلونکې جولای میاشتې تر لومړیو پورې خپل ټول پوځیان وباسي او په دې توګه په بشپړ ډول د افغانستان اشغال پای ته ورسوي او د راتلونکي سپټمبر یوولسمې نیټې راتلو ته انتظار و نه باسي.

د سیاسي چارو کتونکو په اند: هرڅومره ژر چې امریکا خپل پوځي حضور ته د پای ټکی کېږدي هومره به په افغانستان، منطقه او نړۍ مثبت تاثیرات ولري، هغوی ټینګار لري چې امریکا دې ربښتیا هم راتلونکي سپټمبر ته انتظار نکوي هر څومره ژر چې شونې وې افغانستان کې دې خپل پوځي شتون پای ته ورسوي او رسماً دې د خپل شل کلن پوځي موجودیت او اشغال پای اعلان کړي، ښکاره ده چې دا کار په ازادي باندې د مئینو افغانانو لپاره د لویو خوشالیو سبب کیدای شي، ولې نور هغه وخت را رسیدلی دی چې امریکایې واکمن د زړو له تله واقعیتونه درک کاندي او په نړۍ کې خپله د جنګونو او یرغلونو ستراتیژۍ لغوه اعلان کړې، د نړۍ د ازادو ولسونو او خپلواکو ملتونو د غلامولو له بدې ارادې نه په شا شي او د نوي پرمختللې ټیکنالوجۍ په مټ بیا په نړیوالو باندې د خپلو جارحانه پریکړو د تحمیلولو هڅه ونکړي.

هو! د ځواکونو د ویستلو سربیره دې امریکایان دلته (په افغانستان کې) د جګړې د تداوم په اړه د خپلو ناسمو ارادو او پلانونو څخه هم لاس په سر شي او په مقابل کې مو‌ږ دیته ژمن او اماده یو چې امریکا ته د خپلو مشروع تجارتي ګټو د ترلاسه کولو لپاره اسانتیاوې برابرې کړو خو په دې شرط چې امریکایي واکمن د افغان ولس سیاسي ازادۍ او اقتصادي خپلواکۍ ته په احترام لرلو سره د سیاسي او د ډیپلوماتیکو مقرراتو رعایتولو ته په کلکه ژمنتیا وښیي او هیڅکله په نامشروع ډول د خپلو استعماري ګټو ترلاسه کولو په موخه د جارحیتونو، وحشتونو او یرغلونو لار انتخاب نکړي، بیشکه افغانستان یو ازاد، مستقل او ناپېیلی هیواد دی چې د نړۍ له ټولو هیوادونو او قومونو سره د مقابل احترام په رعایتولو سره سیاسي، تجارتي او دیپلوماتیک اړیکي غځول غواړي. تمه ده د امریکا په ګډون ټول لري او نږدې پراته هیوادونه د مشروع ډیپلوماتیکو لارو چارو او اصولو څخه په استفاده افغانستان ته د تجارت، بیا رغونې او بشري خدمتونو ترسره کولو په موخه راشي، نه د افغان ولس د بادرانو او د هغوی د اقاګانو په حیث چې هدف یې د افغانانو په شتمنیو باندې خیټه اچول وي! د امریکا په ګډون هر هیواد د مشروعو نړیوالو ډیپلوماتیکو اصولو او ضوابطو ته په کتو سره د افغانستان په اجازه ددې هیواد د طبعي زیرمو په استخراجولو کې پانګونه کولی شي، افغانان به هیڅکله د دغسې اقداماتو مخالفت ونکړي بلکې تر ډیره به یې هرکلی وکړي او په مخکې به یې ګلان و شیندي، لیکن د افغانستان زیرمې په غلا او په پټه استخراجول او بهر ته یې وړل افغان ولس نه پخوا زغملي، نه یې اوس زغمي او نه یې په اینده کې زغملی شي، هر هغه هیواد یا ځواک چې په ښکاره او یا په پټه توګه د افغانستان طبعي زیرمو د غلا کولو جسارت کوي افغانان به ور ته هغسې د عبرت نه ډک سبق ورکوي لکه په تیرو شلو کلو کې یې چې امریکا ته ورکړ، غرض دا چې امریکا دې د ځواکونو د ویستلو وروسته دلته خپل د جارحیت نه ډک مشن په ټوله معنی پای ته ورسوي یعنې دلته دې د طالبانو پخلاف د مخالفو جهتونو د پلوۍ اشتباه نه تکراروي هغوی ته دې وسلې او پیسې نه رالیږي ځکه دا د جګړې د دوام او غځیدو سبب کیږي افغانستان لا د ړنګیدو او تباه کیدو په لور بوځي له داسې کولو باید جداً ډډه وکړي.

بل پلو ته له شک پرته طالبان او افغانان هم د امریکایي ځواکونو تر وتلو وروسته مسؤلیت لري چې هغوی په سمه او رښتیني توګه د افغان ولس د ارمانونو پوره کولو لپاره سولې راوستلو او د اسلامي نظام حاکمیت ته ژمن پاتې شي او لومړیتوب ورکړي، هغوی دې په پوره توګه د دوحې په تړون کې کړو ژمنو ته متاعهد او ژمن پاته شي او پخپل تړول وس سره دې د دوحې تعاهدات او ژمنې پوره کړې او هم دې په راتلونکې کې د هغو رعایتولو په باب نړیوالو ته له خپله اړخه پوره باور او ډاډ ورکړي او د خپل تړول توان سره سم دې د اسلامي نظام راوستلو او قائمولو ته توجه وکړي، د هیواد ودانولو اوبیا رغونې ته دې پام ډیر کړي، د هیواد د ترقي، امنیت او سوکالي پخاطر دې د کرهنې برخې ته، د عامې روغتیا برخې ته، د صنعتې او حرفوي اسانتیاوو برخو ته پام ډیر کړي، ځکه له مادي پلوه یو خوار او غریب ولس هیڅکله د پرمختللو ولسونو سره سیالې او رقابت نشي کولی او نه په مادي، تعلیمي او اقتصادي لحاظ کمزوري هیوادونه او ولسونه ځانونه د مترقي، شتمنو او بډای هیوادونو د لاسوهنو او شرونو څخه خوندي کولی شي که هر هیواد او ولس غواړي چې هیواد او ولس یې د بهرنیو شرونو څخه خلاص او په امان وي هغه باید یو پر ځان متکي اقتصاد ولري، هغه باید په تعلیمي او علمي میدان کې د سیالانو هیوادونو څخه وروسته پاته نه وي، هغه باید په نوي عصري ژوند کې د نړۍ له سیالانو هیوادونو څخه کم نه وي، په مادي، اقتصادي او تعلیمي لحاظ یو مترقي هیواد کولی شي چې په نړۍ کې یو ځلاند مقام او روښانه نوم پیدا کړي، کوم هیواد ته د محتاجۍ او لاسنیوي پرته د بشري خدمتونو مسؤلیت ته ملا وتړي، نن سبا په نړۍ کې هغه هیوادونه هسکې سترګې ګرځي کوم هیوادونه چې د بهرنیو هیوادونو او یا د نړیوالو مالي ادارو پور وړي نه دي او کومو هیوادونو چې د بهرنیو هیوادونو او یا نړیوالو مالي ادارو څخه پورونه اخیستي موږ وینو چې هغوی پخپلو پریکړو کې خپلواک او ازاد ندي، پر هغوی باندې له بهر څخه نړیوال استبلشمنټ خپلې پریکړې او ارادې طوعاً او کرهاً تحمیلوي، ځکه نن سبا د ازادۍ تعریف په واک کې د کومې مستقلې او خپلواکې جغرافیې څخه عبارت ندی بلکې ترځنګ یې په هغه جغرافیه کې د قوي اقتصاد درلودل هم ضروري دي، ولې که ته! په هغه محدوده جغرافیه کې د نورو هیوادونو پوروړی یې او بهرنیانو د خپلو پورونو په بدل کې ستا د هیواد سترې اقتصادي زیربناوې له ځانو سره ګرو ایښې او هغوی ترې په خلاص لاس استفاده کوي دغسې هیواد یا جغرافیه بشپړه ازاده نه ګڼل کېږي؛ بناً طالب قیادت باید دیته ځیر اووسي که غواړي چې تربیرغ لاندې یې افغانستان نور د پردیو اسونو د زغلولو ډګر نه وي؛ باید د اقتصادي او مالي پلوه هیواد ته ترقي ورکړي او ددې لپاره تړلې مشروع لارې په کار واچوي،همدا راز د امریکا لپاره ښه داده چې هغه د دوحې په تړون کې کړو ژمنو ته متعاهده پاته شي او افغانستان کې د واقعي سولې راتلو سره مرسته وکړي هم د سولې په وړاندې د پرتو خنډونو په لرې کولو کې افغان ولس سره همکاري وکړي ولې چې په افغانستان کې سوله راتلل د افغانستان په ګډون په ټوله منطقه او نړۍ کې هم سوله او امنیت تقویه کوي. پای

## غـــزل

تړون

هـــم مـــې ازار هـــم مـــې وبـــال تـــه چغـــې ووهلـــې
نـــن مـــې یـــو بـــل ډول جنجـــال تـــه چغـــې ووهلـــې

ایمـــان پلورونکـــو چـــې وطـــن پـــه یرغلګـــرو پلـــوره
ایمـــان لرونکـــو دغـــه حـــال تـــه چغـــې ووهلـــې

ویـــل یـــی مـــه مـــو سیزه ځـــو د خپـــل بابـــا پګـــړی تـــه
د غـــــنم وږو پشـــــکال تـــــه چغـــــې ووهلـــــې

کلونـــه کیـــږی دلتـــه دوه ســـري پـــه غیـــږ ورغلـــي
یـــوه مهـــدي او بـــل دجـــال تـــه چغـــې ووهلـــې

یـــو ســـړي تـــول عمـــر پـــردي غـــلام تـــه وعـــظ کـــاوه
یـــو ســـړي تـــول عمـــر دیـــوال تـــه چغـــې ووهلـــې

پنجـــاب لـــه ســـتوني یـــم نیـــولی هنـــدو زهـــر راکـــړل
پـــه هـــدیره کـــې مـــې ابـــدال تـــه چغـــې ووهلـــې

کلونـــه پـــس مـــې یـــوه ورکـــه مینـــه ومونـدلـــه
کلونـــه وروســـته مـــې دســـمال تـــه چغـــې ووهلـــې

وطـــن خفـــه دی وطـــن ځـــان پـــه هیڅـــا نـــه خرڅـــوي
وطـــن پـــه ځـــان واکـــدار دلال تـــه چغـــې ووهلـــې

چـــې د صـــلیب د مـــلا مـــری یـــی مـــاتې مـــاتې کـــړلـــې
تـــړون د لـــوی مـــلا کمـــال تـــه چغـــې ووهلـــې





# تورلیست

صارم

**نه پوهیږم په نوره دنیا کې تور او سپین په کوم اعتبار دي او ولې تور بد او سپین بد نه دی ؟ !**

که سپین دومره بد نه وای چې مطلقاً یې تور پوستکی بد ګڼه ! حتی چې لوړ او ټیټ ذات ته اعتبار یې په همدې رنګونو ورکړی و او آن تر دې چې وایي په فلوریډا ایالت کې به یې د تمساح ګانو ښکار ته د تور پوستو واړه ماشومان وراچول... نو تور به هیڅ په هیڅه بد نه و او سپین به هم په کړي جرم بد یا مجرم ګڼل کېده.

که پورته مقایسې ته یوځه اعتبار نور هم ورکړو او خبره تر اصله رسوو نو ممکنه ده چې دغه تور لیست هم بېرته سپین شي ولې چې پکې شاملو اشخاصو خو یوازې د جبر او استبداد په وړاندې غږ پورته کړی و او بس.

دنړۍ انصاف ته هم سړی حیران شي په ظاهره ټولې ناړې د سولې او بشردوستۍ دي چې ګورې د قانون، مساواتو او امن پسندۍ چیغې به وهل کیږي خو چې تر سپینې یې ورسره رسوې نو ورو ورو به حقیقت له ظاهر نه بدلیږي او خبره به په بله خوا ځي.

په افغانستان کې د سولې، امن او سوکالۍ د راتلو لپاره د یوځو اسبابو ترڅنګه یو هم د تور لست له منځه وړل او باطل اعلانول دي چې په عملي کېدو سره یې تر ډېره د مجاهدینو اطمینان حاصلیږي او په بهرنیانو د باور یو لامل ګرځي ورسره په ضمن کې هغوی هم دې ته واداره کوي چې له خپل لوري هم د یوځه په کولو سره د لانېه نیت اظهار وکړي، خو ...

خو تاسې وګورئ دا ټوله سوله دوسته نړۍ ! په دې برخه کې بېرته دهماغو په طرف ده چې تر بل هر چا یې د بشر وژلو او له منځه وړلو ته پرمختللې وسلې جوړې دي او داتوم طاقت ته هم په همدې موخه رسیدلي.

هیڅ یو بشري سازمان او ټولنه بیا هم غږ نه پورته کوي او د سولې په راتلو کې دا یو عادي ګام پورته کول هم ورته ډېر دروند ښکاري، په داسې حال کې چې د تورلست له منځه وړل د دوحې تړون یوه برخه ده، معنا دا چې هسې خو هم دوی داسې اقدام نه شي کولای یا یې نه کوي چې زور ور پکې کم راځي، خو هغه چې هغوی په خپله خبره کې پرې را نیول کیږي بیا یې هم اقدام کولو ته نه هځوي یانیو که پرې نه کوي، نو ویلای شو چې د سولې، امن، بشردوستۍ او سوکالۍ ظاهر او باطن یې له همدې په ښه ډول معلومیدلای شي.

که څه هم د دغه لست اثر په مجاهدینو او د مجاهدینو په مشرانو هغومره نه دی لکه څومره یې چې دوی ګڼي ځکه دلته د مجاهدینو مشران هم له عادي مجاهدینو ډېره برتري نه لري او په کوم څه چې د عامو مجاهدینو ژوند او اقتصاد ولاړ دی د مشرانو یې هم تر هغه زیات نه دی، شاید په دې لست کې د مشرانو شاملول به ډېرو داسې ګټله چې کېدای شي له دې سره به دهغوی ژوند په ټپه ودریږي او لکه د نړۍ د نورو مشرانو او مسؤلینو په شان به یې د نړۍ په ګوډ ګوډ کې بانکي حسابونه ضبط او له پېښو ولویږي.

خو خبر نه دي چې دلته به لا په دې هیواد هم اقتصادي بندیزونه تر ډېره داسې بد اغېز ونه شي لرلای لکه په نورو ابادو هیوادونو، ځکه دلته د مجاهدینو او مقاومت کوونکو اقتصادي اتکاء تر ډېره د هیواد په طبیعي منابعو ده. د مجاهد تغذیه د هیواد له زراعت او مالدارۍ ده د مجاهد خوراک دلته هغه څه دي چې همدلته پیدا کیږي، د مجاهد خوراک دلته د چرګې له هګۍ او د غوا له شیدو دی چې وریا پیدا کیږي، مجاهد میاشتنۍ تنخواه نه لري، وسلې او مهمات یې هم له دښمنه دي.

دنیا چې کوم حسابونه او قیاسونه کوي هغه ټول زمونږ د هیواد له شرایطو، جغرافیې او طبیعت سره مخالف دي او هغه اثر نه لري چې دوی یې اټکل کوي ولې بیا هم له مانه چې کومې غوښتنې کیږي او امتیازات غوښتل کیږي د هغې په وړاندې دا هیڅ ده او په ما یې که اثر هم ډېر نه دی خو په مونږ د نړۍ ښه نیت هم له همدې په ښه ډول را څرګندیږي.

بـــورا به خـــدای په ګلو مـــوړ کا = باغوانه ستا نیمګړی نیت مې ژړوینه



# چگونه سیاست امریکا باعث نفاق قومی در افغانستان شده؟

م سهاک

این روزها، افغانستان یک بار دیگر با موجی از تعصبات و نفاق قومی روبروست. تظاهرات در فاریاب رنگ و بوی قومی گرفته. در بحبوحه‌ی مذاکرات صلح، حقوق اقلیت‌ها از مسائل مطرح بحث است. تعیینات حساسیت برانگیز قومی جنجالی شده است. صداهای غیرمتمرکز سازی قدرت به گوش می‌رسد. ماجرای تذکره الکترونیک بار دیگر شعله‌ور شده است. در تمام این جنجال‌ها، قوم و قوم‌گرایی به شکل عمدی از سوی امریکا، دولت و رهبران قومی دامن زده می‌شود تا هر جهت به منافع تعریف شده‌ای خود برسند.

در حالی‌که افغانستان از جمله سرزمین‌های اسلامی است که دارای کثرت تنوع قومی می‌باشد. این تنوع قومی برای مردم این سرزمین مشکل نبوده و قرن‌ها در کنار یکدیگر به صورت مسالمت‌آمیز زندگی نموده‌اند. اما در چهل سال اخیر، تنوع قومی برای حُکام خاین و حیله‌گر، رهبران قومی و استعماران به وسیله‌ی مبدل شده تا بتوانند از این موضوع برای تحقق اهداف نامشروع سیاسی شان بهره‌برداری نمایند.

در حالی‌که هر انسان صاحب عقل و بصیرت می‌داند که در چهل سال اخیر این امریکا و غرب بود که یک‌بار در دهه ۹۰ میلادی توسط کشورهای همجوار ایران پاکستان وهندوستان گروه‌های قومی و مجاهدین را علیه یکدیگر قرار داد و افغانستان را به حمام خون مبدل ساختند. بار دیگر بعد از ۲۰۰۱ با در پیش گرفتن تقسیم قدرت براساس اقوام افغانستان را برلبه‌ی پرتگاه کشانده‌اند.

چنانچه امریکا و غرب برای مدیریت و اشغال بهتر افغانستان در کنفرانس بُن، قدرت را براساس اقوام تقسیم نمودند. فورمول تقسیم قدرت طوری بود که پشتون، رئیس جمهور؛ تاجیک، معاون اول؛ هزاره و ازبیک معاون دوم یا سوم. این شیوه‌ی تقسیم قدرت نه تنها این‌که معضل افغانستان را پیچیده‌تر ساخت، بلکه بیشتر از آن دشمنی و تعصبات قومی را در میان اقوام دامن زد.

دید اصلی امریکایی‌ها از چنین فورمول تقسیم قدرت این بود که افغانستان را می‌توان با محوریت اقوام و رهبران قومی بهتر اداره نمود. از این‌رو امریکا تنور سیاست قومی را در افغانستان داغ نگه داشت. از یک سُو اقوام را رتبه‌بندی کرد، سپس در مقابل یکدیگر قرار داد. از سوی دیگر، سعی نمود تا با دادن پروژه‌ها و فراهم ساختن امکانات مالی برای رهبران قومی آنها را طرفدار و در نهایت مُطیع خود سازد. هدف بعدی این بود تا با مُطیع ساختن رهبران قومی، حمایت مردم را توسط آنها جلب کند. بارها دیده شده است که برای جلب حمایت این تیکه‌داران قومی، کرسی‌های بلند دولتی برای آنها و نزدیکان شان پیشنهاد شده است. برای فرزندان و اطرافیان نزدیک شان فرصت تحصیل و سفر در کشورهای خارجی مهیا شده و بیشتر از آن، این رهبران قومی در مقابل سایر رقبای قومی شان از سوی امریکا کمک و یاری شده‌اند.

فورمول تقسیم قدرت براساس اقوام به یک اصل در سیاست افغانستان مبدل شده است. یارگیری‌های

سیاسی در هنگام انتخابات بر اساس همین مبناء صورت می‌گرفت. حتی در زمان حکومت وحدت ملی و حکومت مشارکتی کنونی واضحا قدرت و ساختارهای دولتی به شیوه سهامی تقسیم گردیده که در آن اقوام از سهم خاصی برخودار می‌باشند. این شیوه‌ی تقسیم قدرت افغانستان را بر سَر انبار باروت قرار داده است. هر زمانی‌که سهم قدرت اقوام اعاده نگردد و توازن قومی برهم بخورد، موجی از جنجال‌ها و کشمکش‌ها آغاز می‌گردد. این کشمکش تنها در سطح رهبران باقی نمانده، بلکه به مردم عام نیز سرایت می‌کند و موجی از نفرت و تعصب را در افغانستان بدنبال دارد.

تعدادی از رهبران افغان چنان مخلص به امریکا و چنان خاین به مردم خویش هستند که حد و حدود ندارد. زمانی‌که امریکایی‌ها از آنها بخواهند اختلافات را کنار بگذارید و متحد شوید، این کار را می‌کنند. اما اگر چراغ سبز امریکا نباشد به جان یکدیگر می‌افتند و تشنه‌ی خون یکدیگر و سایر اقوام می‌شوند. در حالی‌که این رهبران قومی کدام خدمتی خاصی نیز برای مردم خویش نیز انجام نداده‌اند، بلکه بنام قوم و قبیله خود به اریکه قدرت تکیه زده‌اند ولی تنها منافع شخصی و تیمی خویش را تأمین نموده‌اند. اما هنگامی‌که جنجال‌ها بیشتر می‌شود، خود را عقب کشیده و قوم خویش را به خط نخست نبرد می‌فرستند، ولی در عقب صحنه بالای پول و چوکی معامله‌ای بالای سرنوشت قوم خویش انجام می‌دهند. در واقع، برای این تیکه‌داران قومی، قوم و مردم تنها وسیله‌ی معامله و امتیازگیری محسوب می‌گردد و بس.

در حال حاضر که امریکایی‌ها بعد از شکست ذلیلانه در صدد خروج از افغانستان می‌باشند، وضعیت را طوری مدیریت می‌کنند که تنش‌های قومی شعله‌ور شده تا یک‌بار دیگر به مردم افغانستان و جهان پیام دهند که افغانستان در عدم حضور ما به وحشت‌سرا مبدل می‌شود، و این امریکا و غرب است که می‌تواند این کشور را از وحشت و جنگ نجات دهد. پس نیاز است تا ما حضور نظامی یا استخباراتی داشته باشیم تا از مردم افغانستان را افتیدن به جان یکدیگر نجات دهیم، زیرا خود این مردم توانایی این کار را ندارند.

تعدادی دیگر که دید دقیق از اوضاع افغانستان، سیاست‌های پشت‌پرده و تاریخ منطقه ندارند، راه حل را غیرمتمرکز سازی قدرت و امثالهم می‌پندارند. این راه حل‌ها نیز پوچ و بیهوده است و افغانستان را دچار فاجعه دیگر می‌سازد.

راه حل این است که به جای این‌که مبنای سیاست قوم، قبیله، سمت و زبان باشد، بایست اساس سیاست خویش را اسلام و احکام شرعی قرار دهیم. این اسلام است که توانایی آن را دارد تا با مفاهیم حیات‌بخش خود نه تنها اقوام افغانستان را بلکه بیشتر از آن اقوام، نژادها، قبایل و رنگ‌های مختلف را از اندونیزیا تا مراکش متحد و یک‌پارچه سازد. این اسلام بود که «اوس و خزرج» را که دشمنی شان به سالیان سال می‌رسید به برادرانی مبدل ساخت که حاضر بودند همه‌ای امکانات زندگی خویش را فدای یکدیگر کنند.

زمانی عبدالاحمد جاوید، استاد پیشین دانشگاه کابل تنوع قومی را در افغانستان به «گل‌های رنگارنگ» تشبیه کرده بود که هر یکی رنگ و بوی خاص خود را دارد و سرزمین افغانستان را زیبا ساخته است. باید متوجه بود که جز آجندای اسلام و وحدت امت، هیچ راه حلی برای بحران افغانستان و وحدت این «گل‌های رنگارنگ» وجود ندارد. هر راه حلی جز این، افغانستان و منطقه را درگیر بحران و خانه جنگی خونین می‌سازد. چنان‌چه تاریخ نه تنها اینکه گواه بر این امر است، بلکه هر بار به شکلی از اشکال تکرار می‌گردد. پس نیاز است تا عبرت گرفته و به ریسمان وحدت براساس اسلام چنگ بزنیم. این ریسمان اقامه دین حقّ و تطبیق شریعت توسط نظام راستین اسلامي می‌باشد. زیرا عزت و شوکت ما در چنگ زدن به عقیده اسلامی و اقامه اسلام است نه در افتخارات قومی و سمتی.

چنانچه حضرت عمرفاروق دومین خلیفه‌ی مسلمین خطمشی جالبی را به پیش روی ما قرار داده است: « ما قومی هستیم که الله سبحانه وتعالی ما را با اسلام عزت بخشید. اگر عزت را در جایی غیر از اسلام جست‌وجو کنیم، الله سبحانه وتعالی ما را ذلیل می‌گرداند». آیا ذلت کنونی ما نتیجه‌ی دوری از این نسخه حیات‌بخش نیست؟!

# د شهيد امير تاريخي کردار!

عبدالرحيم (ثاقب)

اسلامي امارت د خپل تأسيس له لومړۍ ورځې راهيسي له ځينو داسې سختو حوادثو سره مخ شوی چې که يې د مدبر قيادت حکيمانه تعامل نه وای نو نن يې ښايي جهادي پيروانو د بهرني اشغال په مقابل کې د داسې بيساري مقاومت وړتيا نه وای لرلې.

د طالبانو د اسلامي تحريک په لومړيو (دقيقا د ١٩٩٥کال د اگست په شروع کې) په لويديځ کې د طالبانو د مهم او تکتيکي قومندان ملا محمد اخوند شهادت، تر هغه يوکال وروسته د (١٩٩٦ په سپتمبر) کې د کابل د فتحې په درشل د طالبانو تر ټولو پياوړي نظامي ستراتيژيست ملابورجان اخوند شهادت او تر دې ټولو دردوونکی د (٢٠١٥م) کال په جولای کې د طالبانو د اسلامي تحريک بنسټگر ملامحمد عمر (مجاهد) د وفات اعلان هغه څه دي چې د اسلامي امارت په تاريخي مسير کې ورته لړزوونکې پيښې ويلای شو.

لومړنۍ دوې پيښې د اسلامي امارت د مؤسس ملامحمد عمر (مجاهد) رحمه الله د حيات او قيادت په مهال کې رامنځته شوې چې د اسلامي امارت د پلويانو زړونه بيا هم تر ډيره د نوموړي په قيادت متسلي وو.

خو خپله د امارت د مؤسس وفات او هغه هم په داسې حال کې چې د هغه دواړه جهادي مرستيالان شهيد ملا عبيدالله مرحوم او محترم ملا عبدالغني (برادر) حفظه الله د اسارت په حال کې وو د شهيد ملا اخترمحمد منصور (رحمه الله) لپاره له شکه پرته يوه له انساني تحمل نه وتلې سخته حادثه وه چې دی ورسره په خپل جهادي ژوند کې مخ کيدو.

مگر شهيد ملا اختر محمد منصور (رحمه الله) د اسلامي امارت په جهادي مسير کې دا تر ټولو سخته حادثه په داسې ډول استقبال کړه چې نه د بهرني اشغال په خلاف د جهادي مقاومت ليکې ور څخه نامنظمې شوې او نه هم د اشغالگرو خلاف جهادي مقاومت تري بی سيکه شو.

هو! شهيد امير المؤمنين ملا اختر محمد منصور (رحمه الله) ته د هيواد په يوې تر ټولو حساسې مرحلې کې د اسلامي امارت قيادت او د نړيوالې نظامي ټلوالې په خلاف د جهادي مقاومت قومنده وسپارل شوه خو ده په داسې ډول رهبري کړه چې دوست او دښمن يې په حکيمانه تعامل او برياليي تکتيک اعتراف درلود.

هغه مهال چې شهيد امير المؤمنين ته د اسلامي امارت قيادت سپارل کيدو اسلامي امارت په يوه وخت کې په دوو محاذونو کې په مقابله بوخت و.

له يوې خوا د امريکا او ناټو له مجهزو ځواکونو سره جهادي مقاومت او له بلې خوا له داعشي فتنې سره خطرناکه مواجه.

خو نوموړي د الله په نصرت او بيا خپل درايت او جهادي بصيرت سره وکړای شول په دغو دواړو محاذونو کې تاريخي کردار ترسره او مقابل لوري ته نه هيريدونکې ماتې ورکړي.

وَلَا تَحْسَبَنَّ الَّذِينَ قُتِلُوا فِي سَبِيلِ اللَّهِ أَمْوَاتًا بَلْ أَحْيَاءٌ عِندَ رَبِّهِمْ يُرْزَقُونَ

په عین وخت کې شهید امیر المؤمنین وکړای شول په ډېر حکمت او فراست سره د دښمن هغه ټولې دسیسې شنډې کړي کومې چې یې د اسلامي امارت د متحد صف د متفرق کولو لپاره په کار اچولې وي.

که څه هم چې له زماني لحاظه د شهید امیرالمؤمنین د واکمنۍ وخت ډېر کم و خو په دې کم وخت کې یې تاریخي کارنامې ډېرې اهمې او مؤثرې وې.

نوموړي په همدې لیږه موده کې په داخلي لحاظ د مقاومت لیکې په پوره وحدت او ذات البیني انسجام پیاوړې، په پوځي لحاظ یې د یرغلگرو خلاف د نفوذي عملیاتو تکتیکي نوښت إعمال او په سیاسي لحاظ یې له سیمې او نړۍ سره د امارت دیپلوماتیک روابط مستحکم کړل.

هماغه و چې دښمن یې د مدبرانه قیادت اغیزې د ځان لپاره خطرناکې او سمدستي یې د له منځه وړلو په لټه کې شو.

شهید امیر المؤمنین د اسلامي امت د نورو تاریخي اتلانو په څیر له خپل دین او عقیدې څخه د دفاع په لاره کې شهید او په دې سره یې د خپل خدای او دین په وړاندې ورسپارل شوی مسؤلیت په ښه ډول تر سره کړ.

نوموړی د خپل تاریخي مسؤلیت په تر سره کولو کې موفق شو؛ ځکه د خپل مقدس آرمان په لاره کې شهادت هغه موفقیت دی چې د الله تعالی د خاصو او مقبولو بنده گانو په برخه کیږي.

شهید امیر المؤمنین که نن په جسمي لحاظ زمونږ په منځ کې نشته دی خو جهادي کارنامې یې د تل لپاره د اسلامي تاریخ په زړه کې ثبت دي.

له همدې ځایه ده چې حافظ شیرازي ویلي:

هرگز نمیرد آنکه دلش زنده شد بعشق..

ثبت است برجریده عالم دوام ما

شهید منصور رحمه الله د ښې سابقې، دروند دیني او سیاسي شخصیت په لرلو سره په روان مقاومت او طالب غورځنگ کې بې شماره کارنامې لري، چې څو بارزې کارنامې یې د بیلگې په توگه راوړم:

الف – د کامیابه سیاست او موثرې جگړې په یوه وخت امتزاج یې ممکن کړ.

ب – د جگړې په برخه کې یې په سخت وخت کې طالب غورځنگ له پوځي تقسیمه وساته.

ج – د نړیوالو اړیکو په برخه کې یې حدود او اطراف خپله هم وپېژندل او پر طالب غورځنگ یې هم وپېژندل.

ر- په نړیوالو روابطو کې یې اوسني مقاومت ته بندې دروازې خلاصې کړې.

د – د طالب غورځنگ مشرتابه یې تر یوه حده افغان شموله کړ.

س – د یوه باندني سازش په توگه یې د داعش پروسه په نطفه کې ناکاره کړه.

شهید منصور رحمه الله د خپل هیواد له آزادۍ او په هغه کې د اسلامي حاکمیت له ټینگښت سره بې سارې مینه لرله، همدا وجه وه چې هغه په دې لاره کې داسې جدي گامونه واخیستل چې هېواد یې تر ډېره له بهرني اشغال څخه د آزادۍ درشل ته ور نیږدې خو خپل سترې صورت یې په دې لاره کې په اور وسوځاوه... .

روح دې خوشاله او ترشا پاته نیمگړی آرمان دې د هېواد په بشپړې خپلواکۍ سره الله جل جلاله در پوره کړي.

لیکوال ـ مصلح افغان




په داسي حال کې چې د طالبانو مشرتابه لا تراوسه خپلو نظامي قومندانانو ته د پراخو تهاجمي عملياتو او ولايتونو د ولکه کولو اجازه نه ده ورکړې؛ د معمولي نظامي عملياتو په ترڅ کې د افغانستان پوځي وضعيت په بل مخ اوښتی.

د تېري يوې مياشتې په موده کې څه باندي شل ولسوالۍ، په لسگونو لويې نظامي قرارگاوي او په سلگونو پوځي پوستې د طالبانو لاس ته په داسي شکل لويدلې چې په زرگونو عسکر يې يا خو ژوندي نيول شوي، يا تسليم شوي، يا تښتيدلي او يا هم ځيني وژل شوي دي.

برعکس د کابل رژيم د ضعيف مورال له کبله، د دې توانمندي له لاسه ورکړې چې د يادو نيول شويو مراکزو د بيا نيولو هڅه دې وکړي، له دې نه څرگنديږي چې د بهرني اشغال له خاتمې سره هم مهاله، د اشغال بقايا (د کابل موجوده رژيم) د حتمي سقوط په درشل کې قرار لري. دا يو ثابت ځمکنی حقيقت دی. چې له نورو زاويو يې د بدلولو هڅې کيږي.

### له بديلو لارو د سقوط د مخنيوي هڅې:

= د کابل رژيم چارواکي چې نن سبا کومه خبره زمزمه کوي؛ هغه دا چې وايي اوس زموږ پرضد د طالبانو جهاد شرعي صبغه بايللې ده، ځکه چې بهرنيان د وتلو په حال کې دي.

په همدې خاطر د کابل رژيم چارواکي گرځي چې په نړۍ کې کوم همنظره سيکولر ملا ويني؛ د روان جهاد د نامشروعيت فتوا ترې غواړي او پر افغانستان يې په دې نامه تطبيقوي چې گويا دا خپل منځي ناروا جگړه ده، جهاد نه دی.

د دوی له دې ادعا، چې وايي جگړه اوس مشروعيت نلري؛ ښه څرگنده شوه چې د دوی په زعم هم تر دې وړاندې دا شل کاله د مجاهدينو مبارزه برحق جهاد و، او دوی چې دا شل کاله د اشغالگرو ترڅنگ ولاړ وو؛ دوی په ناروا لاره کې وو، د دين او وطن پرضد جنگيدل.

او دا چې اوس په ډلو ډلو عسکر وسلې غورځوي، له مجاهدينو سره يوځای کيږي؛ دې هم ښه ثابته کړه، چې تر دې وړاندي هغوی د امريکا په قومنده د هغوی د ډالرو په بدل کې د کرايي قاتلانو دنده اجرا کوله، اوس چې امريکايان تري ولاړل، د ډالرو اميدونه يې قطع شول، نو يې هغه باطله لاره پريښوده.

نو آيا د رژيم چارواکي هم د خپلو عسکرو په څير، په تېر کردار پښيمانه دي؟ آيا د اشغالگرو له ملگرتيا بيزاره شوي؟ آيا د طالبانو دا تېره شل کلنه مبارزه برحق جهاد گڼي؟ او آيا خپل کار ته ناروا عمل وايي؟ که چيري جواب مثبت وي، نو بلکل دا حق لري چې ووايي، د طالبانو جهاد زموږ په وړاندي نور مشروعيت نلري.

او که چيري اوس هم د پخوا په څير ځانونه د نيويارک او واشنگټن ساتونکي گڼي، طالب ته ترهگر وايي، د امنيتي ترون ترنامه لاندي اوس هم د ناټو په متوقع مالي او نظامي مرستو او بمبارونو ناز کوي. (دفاع وزير يې خپلو عسکرو ته ډاډ په دې ورکوي چې تاسو وار مه خطا کوئ، له دې پس به هم له موږ سره د بهرنيانو پوځي مرستې او بمبارونه جاري وي.)

نو آيا په داسي صورت کې بيا د دوی دا دعوه پرځای ده؟ چې وايي، زموږ په وړاندي روان جهاد خپله صِبغه بايللې؟! نه هيڅکله نه.

= بله حربه چې د کابل رژيم چارواکي او د هغوی په اشاره يې ځيني په اصطلاح بې طرفه وگړي کاروي؛ هغه دا ده چې دوی وايي، بهرنيان په غيرمسئولانه ډول ووتل، افغانستان يې د کورنۍ جگړې طرف ته ور ټيل واهه، مانا دا چې بهرنيان بايد تر نامالومه وخته پوري

دلته واى، نه واى وتلي، دا کومه جګړه چې شل کاله روانه وه؛ د دوی په نظر هغه ډېر آيډيال حالت و، هغه دې همداسې روان واى، کـه څـه هم د طالبانو له يوې ورې حملې سره به يرغلګرو پوره کلي، جوماتـه، مدرسې او قريې ورانولې، په سلګونو ښځې او ماشومان به يې د مرګ په خوب ويده کول، د دوی په نظر هغه بد حالت نه و، ولي اوس چې په يوه مياشت کې چې بهرنيان لا هم مکمل نه دي وتلي؛ طالبان په يوه مياشت کې شل ولسوالۍ نيسي؛ په سلګونو عسکر پرځای د دې چې په جګـړه کـې ووژل شي؛ پـه تسـلميدا سره د هغـووی ژونـد ژغـورل کيږي، جګړه مخ پر ختميدو ده، طالبان د پرمختګ پـه حـال کې دي؛ دوی دا حالت ډېر د تشويش معرفي کوي، نظرونه وړاندي کوي چې د خدای دپاره افغانستان تباه شو، جګړه خونړۍ شوه، طالبـان دي د زور پرځای له حکومت سره په کابل کې يوځای شي. د دوی په خبره وطن دې نه ورانوي.

دا هغه تشويش دی چې له ځمکني حقيقت سره هيڅ نـوع تـړاو نلري، بلکې يو تشويش دی، يوه تبليغـاتي حربـه ده چـې د بهرنيـانو د پاتې کيدلو او يا لږ ترلږه د اشغال د ميراثي رژيم د ساتنې په موخـه يـې دا تش په نامه بې طرفه چارپوهان ترسره کوي.

کنه حقيقت دا دی چې لومړی د اشغال له خاتمې سره، دويـم د طالبانو له پرمختګ سره او دريم لـه جګـړې څخـه د عسکرو د لاس اخيستلو په وجه سل سـلنه دا حقيقـت واضـح دی چـې جګـړه بـه پـه افغانستان کې پای ته رسيږي. افغانستان به د امن کور وي. افغانسـتان هيڅکله د کورنۍ جګړې خوا ته نه درومي، هيڅکله د تباهۍ خوا تـه نه دی روان. البته د رژيـم ځينـي چـارواکي کـه خـپلي سرټمبګـۍ تـه همداسي دوام ورکړي، ممکن د دوی د تباهي باعث وګرځي.

= بل تشويش چې ځيني تشويش اچـوونکي يـې مطـرح کـوي؛ هغه دا دی چې وايي که په افغانستان کې د طالبانو په مشرۍ اسلامي حکومت رامنځ ته کيږي؛ ممکن افغانستان نړيوال سياسي مشـروعيت له لاسه ورکړي، نړيوالې مرستې به قطع شي. نو پکار ده چې طالبان د کابل په موجوده رژيم کـې ضـم شي ترڅـو د نـړۍ مرسـتې دوام پيـدا کړي.

که چيري د افغانستان نړيوال مشروعيت دا وي چې دا شل کالـه يې په نړۍ کې درلودی، او له هري خوا ډالر ورته را روان وو، خو د هر ډالر په بدل کې يو افغان وژل کيده، نو دغه مشروعيت ته خـو افغانـان هيڅ اړتيا نلري. بلکې په خلاف يې ولاړ دي. او کـه نړيـوالي مرسـتې همدا بللي کيږي چې ځمکه او فضا دې د پرديو پـه ولکـه کـې وي؛ دا مرستي هم افغانانو ته قابل قبول نه دي.

حقيقت دا دی چې دا هم يو تشـويش دی، هغـه چـې د رژيـم د خواخوږو بې طرفه کارپوهانو لخوا مطرح کيږي، کنه رښـتيا خـبره دا ده چـې طالبـان اوس پـه نـړۍ کـې نـه يـوازې د يـو پـوځي، بلکـې د افغانستان د يو مطرح او واکمن سياسي ځواک په حيث پيژندل شوي، له همدې امله همـدا اوس نړيـوال ورسره سـياسي تعامـل کـوي، دوه اړخيزې اړيکي ورسره رغوي، په آينده کې که د طالبـانو نظـام راځـي، نړيوال به هم د خپلو دوه اړخيزو ګټو په رڼا کې له افغانستان سره د يـو سيال په حيث سياسي چال چلند کوي.

بلکې افغانستان بـه د بـل هـر وخـت پـه پرتلـه لـه ښـه سـياسي پرستيج څخه برخمن ګرځي، لازمه نه ده چې پر کابل دې د امريکا يو ګوډاګی رژيم واکمن وي، او نړيوال دې د رسميت پيژندني لپاره هغـه ګوډاګی رژيم حرف آخر وګڼي.

طالبانو هم د نړۍ له هيوادونو، هم د سيمې او هم له ګاونـډيانو سره تفاهم کړی، د هغوی انديښنې يـې رفـع کـړي، او هغـوی تـه يـې قناعـت ورکـړی چـې افغانسـتان تـه بـه آينـده د يـو محکـوم هيـواد او ګوډاګي رژيم له عينکو نه ګوري، بلکـې د دوه اړخيـزو ديپلومـاتيکو، بشري او اقتصادي ګټو پر آساس به ورسره تعامل کوي.

له همدې ځايه ده چې د افغانستان روان حالاتو ته خلک له دوو زاويو ګوري، ځوک چې د افغانستان د خپلواکۍ او په خپلواک هيـواد کـې د يـوه قـوي، مقتـدر اسـلامي حاکميـت تـږي دي؛ هغـوی داسي تشويش نلري لکه څنګه چې يې نن سبا د کابل د ګوډاګي رژيم ځيني خواخوږي د بې طرفو خلکو په پوښ کې مطرح کوي.

ځکه چې ځمکني واقعيتونه دا دي، چـې افغانسـتان نـور دې تـه بيخي نژدې شوی چې له شل کلن اشغال څخه په کامل ډول استقلال ترلاسه کړي، او دې ته نژدې شوې چې د تل لپاره د جګړې عوامـل پـه کې ختم شي. او دې ته قريب دی چې نور د هغو پرديپاله سيکولرذهنه ګوډاګيانو او مزدورو جنګ سالارانو له واکمنۍ څخه وژغورل شي.

پورتني ذکر شوي موارد فقط تشويشونه دي، حقايق هغه څه دي چې موږ يې يادونه وکړه او دا تشويشونه د دې لپاره خلک مطرح کوي چې که بهرنيان را ونه ګرځي نو لږ ترلږه د هغوی دا ميـراثي رژيـم خـو بايد وژغورل شي. پای ....!!



حسن مومند

# د امریکا زوال، هیلې او حقایق

عروج او زوال د ژوند نه جدا کېدونکې برخه ده خو په عروج او زوال دواړو کې په فطري اصولو او غوښتنو ټینګ پاتې کېدل لوړ انساني اخلاق غواړي.

د زوال پر مهال نه مایوسه کېدل او په عروج کې نه مغروره کېدل او له خپلې ماضي نه، نه غافله کېدل د اولوالعزمو خلکو کار دی؛ خو دا لوړ انساني اخلاق کمو خلکو ته په نصیب کېږي.

ډېر افراد، قبیلې اقوام او ملتونه داسې وي چې د عروج پرمهال فکر کوي چې د پرمختګ او بریالیتوب تر هغه سرحده رسېدلی چې نه ورته له ده ورانډې څوک رسېدلی او نه به ورسېږي؛ دا د فرد او ټولنې لپاره ډېر تباه کونکی فکر دی.

۳۰ کلونه وړاندې پر امریکا هم د عروج همداسې یو حالت راغلو کله چې شوروي اتحاد په افغانستان کې شکست وخوړ؛ ټوټه ټوټه شو او سوړ جنګ پای ته ورسېد؛ د سوړ جنګ دا اختتام امریکا په خپل ژوند کې د خپل ځان لپاره داسې ستر بریالیتوب وګڼلو چې د امریکا په ګومان نه داسې بریالیتوب د چا په نصیب شوی و او نه د چا په نصیب کېدای شو نو ځکه یې د ټولې نړۍ د غلام ګرځولو او په یواځې ځان پر ټولې نړۍ د واکمنۍ او باداري خوبونه لیدل او ددې لپاره یې ناوړه او تباه کونکي اقدامات کول.

نن پوهان وايي: د امریکا همدا عروج د دې زبرځواک د زوال د پیل نقطه وه.

پدې اړه ګڼ کتابونه هم لیکل شویدي چې د کشور محبوباني HAS CHNA WON? (آیا چین وګټله؟) نومې تازه خپور شوی کتاب پکې زیات ګټور ګڼل کېږي او د نړیوالو توجو یې زیاته راجلب کړیده.

کشور محبوباني د سنګاپور نامتو دیپلومات دی؛ په هارورډ او لیکوان پوهنتونونو کې یې استازي کړې؛ د ملګرو ملتونو په اداره کې یې د سنګاپور د ځانګړي استازي په صفت دنده اجرا کړې او د لږې مودې لپاره یې د امنیت شورى مشري هم کړیده.

کشور پدې کتاب کې په کلکه ویلي دي چې امریکا د نړۍ د تر ټولو لوی ځواک حیثیت له لاسه ورکوي او ځای یې چین نیسي؛ کشور پدې کتاب کې د امریکا او نور لویدیځ ګڼې نیمګړتیاوې یادې کړیدي او اصرار کوي چې که اوس هم امریکا خپلو خطاګانو ته متوجې او ازاله یې وکړي خپل حیثیت خوندي ساتلی شي.

کشور ځان د چین او امریکا دواړو خیرخواه بولي او د دواړو ترمنځ د اختلافاتو زیاتوالی د ټولې نړۍ په تاوان کڼي نو ځکه په غربي نړۍ کې دکشور دلایل په غور له مطالعې لاندې نیول شویدي او په تېرو څو میاشتو کې په ګڼو پوهنتونونو او دولتي مهمو ادارو کې پر دې موضوع د لیکچر ورکولو لپاره دعوت شوی هم دی.

کشور پدې کتاب کې لیکي: په تېرو ۳۰ کلونو کې د امریکا د ۵۰ سلنه اوسېدونکو په عوایدو کې کمی راغلی او د

ژوند سطحه یې په مسلسل ډول راټیټه شویده خو برعکس په همدې ۳۰ کلونو کې چین خپل ۷ سوه ملیونه نفوس د غربت له کرښې نه راپورته کړل.

کمونستي دولت دوي ته، خوراک، څښاک، روغتیا، هستوګنې، کار ورکولو او د ژوند په نورو برخو کې ټولې داسې لازمې اسانتیاوې برابرې کړې چې چینایانو په خپل ټول تاریخ کې دومره اسانتیاوې او خوشالي نه وه لیدلې خو امریکا پدې ټولو ۳۰ کلونو کې د چین دا اقتصادي ستړپرمختګونه له پامه غورځولي وو او چینایانو ته یې د کمونستي نظام نه د وتلو تلقین کاوه.

کشور وایي امریکا په خپل جمهوریت ډېره نازېږي او د چین د کمونستي نظام سخت تردید کوي خو دا یې له پامه غورځولې چې د چین نظام د جمهوریت په ځای په meritocracy(د استعداد پر بنسټ د مشرـ انتخاب) په اصولو خپل نظام چلوي چې له دې لارې دوي ته د نظام د مشرۍ لپاره ذهین، با استعداده او هوښیار خلک په نصیب کېږي چې د هېواد او ملت په هکله غوره پرېکړې کوي؛ ددې نظام له مخې د کمونست ګوند هوښیار او ذهین خلک لویو منصبونو ته رسول کېږي؛ د استعداد پر بنسټ د مسئولیتونو د ورکولو دا کار په جمهوري نظام کې بیخي نه شي پلي کېدای.

کشور وایي ۱/۴ بلیون نفوسو لرونکي هېواد چلول او متحد ساتل څه اسان کار ندی خو د چین دولت له تېرو ۷۰ کلونو راهیسې په ډېر بریالیتوب ددې هېواد په چلولو او متحد ساتلو توانېدلی دی.

د ۱۱ ستمبر پېښه هم د امریکا د وروسته والي یو مهم لامل و؛ په تېرو ټولو ۲۰ کلونو کې امریکا پر افغانستان او عراق د د یرغل نه پس پدې دواړو هېوادونو کې خپل قهر ښکاره کولو او د نړیوال اقتصاد نه یې تر ډېره حده توجو اوړېدلې وه په همدې زمانه کې چین په ډبلیو ټي او (نړیوال سوداګریز تنظیم) کې شامل شو چې ورسره ۹۰۰ملیونه روزل شوي کارګر د کارګرو د نړیوال مارکیټ برخه وګرځېده؛ پدې سره د امریکا او نورې لویدیځې نړۍ د کارګرو مقابله سخته شوه؛ په همدې وخت کې امریکا د خپلو کار ګرو د روزنې نه هم غافله وه؛ د چین د کارګرو مزد کم و چې له امله یې د امریکا ډېره سرمایه چین ته منتقله شوه.

د امریکا همدا اقتصادي زوال ددې باعث شو چې غریبو او متوسطو امریکایانو ټرمپ ته رایې ورکړې چې د ټرمپ انتخاب پخپله امریکا ته یوه لویه ضربه وه؛ ټرمپ د امریکا د اقتصاد ښه کولو لپاره هیڅ ونکړل؛ د یو لړ ناوړه اقداماتو له امله یې د نړۍ سره د امریکا روابط ترینګلي او امریکا یې په نړۍ کې بې اعتماده کړه او د اقتصادي مشکلاتو نه د امریکایانو د توجو اړولو په موخه یې د اقلیتونو پرضد نفرت راپارولو ته لمن ووهله چې دا د امریکا او ټول لویدیځ لپاره ډېر د تاوان نه ډک اقدام و.

د ټرمپ د واکمنۍ پر مهال امریکا د خپلو اتحادیانو نه ځان راټول کړ نو روابط کمزوري او ګڼ اتحادیان ترې خفه شول؛ کله چې په نړۍ کې کرونا رامنځته شوه د نړۍ او خصوصاً د امریکا د اتحادیانو سترګې د امریکا پر لور وې؛ ټولو هیله لرله چې امریکا به یې مرسته وکړي خو چې دا وبا خپره، په امریکا کې مړي زیات او امریکا د بحراني حالت سره مخامخ شوه نو د امریکا ضعف ټولې نړۍ ته څرګند شو او ټولو ته معلومه شوه چې امریکا پخپله د بحران سره مخامخ ده نو د نورې نړۍ مرسته به څه وکړي؟ امریکا د ماسکونو په تیارولو کې هم پاتې راغله او و یې نشو کړای چې خپل ټول نفوس ته ماسکونه ورسوي.

اوس چې د کرونا نه د حفاظتي تدابیرو په لړ کې د واکسین خبره ده نو بیا هم د وروسته پاتې او مخ پر ودې هېوادونو سترګې د امریکا پرلور دي چې واکسین به ورکړي خو امریکا تر اوسه خپله اړتیا هم نده پوره کړې او امېد لري چې په روان دوبي کې به خپله اړتیا پوره کړي نو په داسې حالت کې به امریکا د نورې نړۍ څه مرسته وکړای شي؟

چین د کرونا د خپرېدا پر مهال ډېر جدي اقدامات وکړل، دا مرض تر ټولو ړومبی همدلته پیدا شوی او خپور شوی و خو تر ټولو ژر همدلته ختم شو.

چین د حفاظتي تدابیرو په لړ کې د ګڼو وروسته پاتې او مخ پر ودې هېوادونو سره مرستې وکړې نو پدې هکله یې پر امریکا وړاندیوالی په برخه شو.

کشور وایې: اوس هم وخت تېر ندی که امریکا درې کارونه وکړي د لوی اقتصادي زوال نه بچ کېدای شي؛ یو دا چې د نورې نړۍ او په ځانګړي ډول د اسلامي نړۍ په کورنیو چارو کې د مداخلو نه لاس په سر شي او دوهم دا چې خپله دفاعي بودیجه راکمه او پرځای یې د خپل ولس د ژوند ښه کولو، نویو څېړنو او اقتصادي پرمختګ لپاره بودیجه زیاته کړي.

کشور وایې امریکا ۱۳ داسې ستر جنګي جازونه لري چې د هر یو قیمت په سونو ملیارده ډالر دی او د فعال ساتلو لپاره یې هره ورځ په ملیونونو ډالر لګښت غواړي خو د هارورډ پوهنتون د پروفیسر تم کولتېن په وینا یې د جنګ په حالت کې د تباهۍ لپاره د دښمن د سل زره ډالرو یو توغندی کافي دی.

کشور وایې: دریمه مشوره مې دا ده چې امریکا او نور لویدیځ دې دا فکر پرېږدي چې ګیني د ټولې نړۍ د پرېکړو او د نړۍ مثبت بدلون او پرمختګ د دوئ مسئولیت دی؛ ټول لویدیځ د نړۍ ۱۲ سلنه نفوس تشکیلوي؛ ۱۲ سلنه که په ۸۸ سلنې نفوسو د ۱۲ سلنې د واکمنۍ فکر معقول ندی؛ لویدیځ باید نورې نړۍ سره د خصومت چاپیریال ختم او د ملګروملتونو او نورې نړۍ سره یو ځای د نړۍ د پرمختګ او د ستونزو د حل فکر وکړي.

کشور چین ته هم ښې مشورې ورکوي، وایې: چین چې د امریکا د دولت د چین ضد یولړ اقداماتو په مقابل کې ورته اقدامات کوي او د امریکا د سوداګرو حمایت له لاسه ورکوي دا یې کامیابه کړنلاره نده؛ وړاندې به چې امریکا د چین پر ضد کوم اقدام کاوه نو د امریکا سوداګر د خپل دولت پرضد راپورته او ددې اقداماتو مخه به یې نیوله خو په تېرو څو کلونو کې چې چین پر امریکایې سودا ګرو ځنې بندیزونه ولګول نو چین د امریکا د سوداګرو دا حمایت له لاسه ورکړ.

کشور وایې: امریکا د چین له کمزوریو خبره ده خو د مثبتو استعدادونو نه یې ناخبره ده او خپل قوت نه خبره ده خو خپلو کمزوریو ته یې پام ندی.

د یادولو وړ ده چې له کشورنه وړاندې هم ګڼو پوهانو د امریکا د اقتصادي زوال خبره کړېده

د نیوز ویک مسئول او د سي این این کوربه فرید زکریا هم په ۲۰۰۸م کال کې په خپل **Post American World** (د امریکا نه پس نړۍ) نومي کتاب کې لیکلي و چې د امریکا وخت تللی دی او راتلونکی کې به چین او هند د نړۍ لوی طاقتونه وي.

همدا راز د نوبل جایزې ګټونکی نامتو اقتصادپوه جوزف سټلګټز هم د سوړ جنګ خاتمه د امریکا د زوال پیل ګڼلی و؛ هغه په نړۍ کې د روسې بیا مطرح کېدل دامریکا لپاره لویه ننګونه ګڼلې او وایې چې د خپلو ډېرو معدني وسایلو او د تېلو د زیاتو زېرمو د شتون له امله روسیه د چین په نسبت امریکا ته زیاتې ستونزې پیدا کولی شي.

امریکا مو دښمن دی په تېرو ۳ لسیزو کې یې پر اسلامي نړۍ ډېر ستر یرغلونه وکړل او مسلمانانو ته یې زخت زیات ځاني او مالي زیانونه ور واړول نو چې څوک یې د زوال خبره کوي په ټولو مسلمانانو ډېره ښه لګي او پرې ډېر زیات خوشالېږي.

د الله تعالی پرېکړې څه دي؟ موږ ترې نه یو خبر؛ الله تعالی چې امریکا په نظامي ډګر کې په افغانستان کې د ستر شکست سره مخامخ کړه شاید ژر یې توتې او په سیاسي او اقتصادي لحاظ د لویې بربادۍ سره مخامخ کړي؛ دا هم یقیني ده چې په افغانستان کې د شکست نه پس یې په نړۍ کې حیثیت او مقام ته ډېر ستر زیان رسېدلی؛ نړۍ کې یې پخوانی، رعب او دبدبه نده پاتې او د جنګ ډګر کې یې د مخامخ مقابلې توان هم له لاسه ورکړیدی؛ اقتصاد ته یې هم ډېر ستر تاوان رسېدلی خو دا د اقتصادي زوال او په عسکري، سیاسي او اقتصادي ډګرونو

کې ترې د بل هېواد یا اتحاد د وړاندې کېدلو خبره داسې افسانه غوندې ګرځېدلې ده.

او دا څه نني خبره نده بلکې د دوهم نړیوال جنګ نه پس څو کرته په نړۍ کې داسې حالات راغلي دي چې پوهانو ویلي: امریکا نوره د نړۍ د تر ټولو لوی طاقت د مقام نه را وغورځېده؛ کله په ویتنام کې د امریکا د ماتې پرمهال دا ویل شوي؛ کله فضا ته د شوروي اتحاد د مصنوعي قمر د پورته کېدلو په وخت کې دا خبره رامخې ته شوې، او کله د ځینو نورو هېوادونو بې ساري پرمختګونو یا د یو شمېر پرمختللو هېوادونو د اتحادونو د رامنځته کېدو نه پس دا ویل شویدي چې امریکا د نړۍ د ترټولو لوی ځواک د حیثیت نه بې برخې شوه.

خو بیا وروسته دا وړاندوینې سمې ندي ثابتې شوي؛ له دې حقیقت نه انکار نه شي کېدای چې سمدستي د نړۍ پر اقتصاد دامریکا قبضه ده؛ عسکري طاقت سره یې د یو هېواد طاقت هم ندی برابر او لا هم د نړۍ غټې پرېکړې امریکا کوي.

چې کله چین یا بل هېواد یا کوم اتحاد د امریکا نه پرمختللې ځمکني او هوایي جنګي وسایل جوړ کړل؛ کله یې چې د امریکا پرېکړې رد کړای شوې او کله یې چې د نړۍ تجارت د ډالر پر ځای په کومه بله کرنسۍ رائج کړ او نړۍ یې د آی ایم ایف او نړیوال بانک له پنجو راوویستله نو بیا به موږ ووایو چې امریکا د هر اړخیز زوال سره مخامخ شوه.

هو! اصل زوال اخلاقي زوال دی، امریکا د اخلاقي زوال ډېرو لویو ګړنګونو ته پرېوتې ده؛ بې حده زیاته بې اعتماده شویده، غربي اتحادیان یې هم په دوستۍ باور نه کوي؛ اوس په ټولې نړۍ کې دا مشهوره شویده چې د امریکا د دښمنۍ او دوستۍ دواړو نه ځان لرې ساتل پکار دي؛ دښمنی ته یې څوک د ټینګې ندي او دوستي یې د اعتماد وړ نده.

نو ځکه د ټولې نړۍ د قیادت او په خپل موټي کې د ټولې نړۍ د نیولو خوبونه چې امریکا لیدل هغه وخت اوس تېر شویدی.

دا هم یقیني ده چې د روسې، چین او هند په څېر د اتومي ځواکونو پرته د برازیل، ترکې او اندونیزیا په څېر لوی هېوادونه هم د نړۍ په عسکري، اقتصادي او سیاسي میدانونو کې خپل حیثیت او مقام ښکاره کول غواړي.

## په ځنځیر تړلی ښه دی خو نه غلام!

زندان ته تنها په دې جرم یوړل شوم، چې پر غربي نظام او کابل کې د واشنګټن ساتنې لپاره جوړې شوې اداري راضي نه وم. لس میاشتې وروسته مې لومړۍ محکمه وشوه. په لومړۍ محکمه کې راته قاضي زما د عمر په اندازه ۲۳ کاله قید واوروه. هغه مهال مې قاضي ته له خولې د څو پوچو ویلو تر څنګ دغه خبرې هم وکړې:

له قران او حدیثو نا خبره یې او د انسان په لاس جوړ شوي قانون پر اساس د بې ګناه انسانانو له ژوند سره لوبې کوې!! ته هم بچي لرې که نه؟ په خپل نازولي بچي دې کله هم د ګل وار کړی؟ کله دې پرې یوه شپه بند لوریدلی؟ زه ژوند نه لرم؟ کورنی نه لرم؟ هیلې نه لرم؟

قاضي صیب زه یو ځوان یم. لا مې د ځوانی هیلې په زړه دي.. ډېرې هیلې لرم.. د ژوند په خوند پوهېږم، د پوهنتون مې دریم کال شروع دی. کال وروسته مې د پوهنتون همصنفیان فارغېږي. قاضی صیب زه درویشت کلن ځوان یم، تا ما ته زما د عمر په اندازه حبس راکړ..

قاضي صیب په ځنځیر تړلی ښه یم، خو نه ستا په څېر غلام ته اجیر یې، قاضي صیب سر کړېوان ته ښکته کړ او د خپل پلورل شوي قلم توکمه یې زور کړه او جېب کې یې کېښود، خو نن دا دی د سپین کاغذ پر مخ په ځارنوالی او رژیم کې زما قید پاتې، خو زما د ازادی دیارلسمه میاشت تمامېدونکې ده...

# شهید امیرالمؤمنین او اسلامي امارت

سید شریف

شهید امیر المومنین ملا اختر محمد منصور تقبله الله هغه رهبر و، چې پر پوهې، شجاعت او د جهادي مقاومت پر پیاوړتیا یې دښمن هم اعتراف کوي. شهید منصور د صلیبي اشغال پر ضد روان جهادي مقاومت پراخ او ځو اړخیز کړ، د جګړې د جوش سره یې د ډیپلوماسۍ هوش هم غاړه غړۍ کړ او په مټ یې نړیوال قانع کړل چې امریکا پر افغانستان ناروا یرغل کړی او پر ضد یې د طالبانو په مشري ملي پاڅون یو مشروع غبرګون دی.

شهید منصور صاحب په نظامي ډګر کې نوښتونه رامنځته کړل، د مجاهدینو د بدني او فکري روزنې لپاره یې معسکرونه پرانستل. نظامي ځانګړې قطعې یې جوړې کړې، د چریکي بریدونو ترڅنګ یې د جبهیې حملو امکانات برابر کړل چې له امله یې داشغال ضد په یوه نیمه لسیزه مقاومت کې مجاهدین په لومړي ځل وتوانیدل چې د یو ولایت (کندز) مرکز هم ونیسي.، د هلمند پر ۹۰ سلنه واک ټینګ کړي، د فراه له ۷۰ سلنې دښمن فرار کړي، په بغلان، فاریاب، سرپل، بادغیس، غور، بدخشان، ننګرهار، لوګر، میدان وردګ، غزني، زابل او.... کې ګڼې ولسوالۍ او پراخې سیمې له دښمن څخه تصفیه کړي او د امن سپین بیرغ پکې ورپوي.

شهید منصور صاحب د زمان او مکان په خورا ترینګلو حالاتو کې سیاسي هلې ځلې پراخې او چټکې کړې، د نوموړي د نیابت په مهال قطر کې سیاسي دفتر پرانستل شو، د همدې دفتر له لارې د اسیا او اروپا مختلفو هیوادونو ته سفرونه وشول، په لویو کنفرانسونو کې د امارت استازو د امارت موقف په داسې ډول بیان کړ چې ډیری ګډونوالو یې د امارت د داعیې ملاتړ وکړ.

د شهید منصور صاحب په هڅو فرهنګي او مطبوعاتي مبارزه غښتلې شوه. ددښمن په منځ کې دعوت پیل شو. د ملکي تلفاتو د مخنیوي لپاره ځانګړې اداره تشکیل شوه. معارف ته دومره وده ورکول شوه چې د جګړې له امله تړل شوي او زیانمن شوي زیات ښوونځي بیرته فعال او پرانستل شول، حتی په بیلابیلو ولایتونو کې د لسګونو مدرسو او ښوونځیو د بنسټ ډبرې کېښېښودل شوې.

شهید منصور صاحب په ډیر تدبیر او پوره زړه ورتیا د داعشي فتنې او بغاوت پر ضد ګامونه پورته کړل، اسلامي امارت کې د انشعابونو مخه یې ډب کړه، پر اشغالګر دښمن او مختلفو یونیفورم لرونکو اجیرانو یې ځپونکي بریدونه وکړل. که د یادوو شوو فتنو پر ضد د منصور صاحب پر وخت اقدام نه وای، افغانستان به دوهمه سوریه وای، خپلمنځي شخړو به د یرغلګرو شتون او کرغیړن پلانونه له خلکو هیر کړي وای او افغانستان به د نړیوالو زبر ځواکونو د جګړې تود ډګر وای.

منصور صاحب امارت کې داسي اداري جوړښت رامنځته کړ چې ډیر حکومتونه ځنې بې برخې دي، د بېلګې په توګه ټول کمیسیونونه او اداري ځانګړې لایحې او طرز العملونه لري، د مشرتابه له لوري وخت په وخت د ټولو نظامي او ملکي چارو او ادارو ارزونه ترسره کیږي، د مکافاتو او مجازاتو اصل تطبیق دی، د مشرتابه له لوري چې د نصب او عزل کوم فرمان صادر شي، څوک چون و چرا نشي پکې زیاتولای.

دښمن د منصور صاحب لیاقت او اهلیت درک کړ، له ډیرو لارو یې د دغه ستر شخصیت او نومیالي اتل د جرحه کولو هڅې وکړې، د پروپاګند ډیر چینلونه یې پسې پرانستل، د ترور هڅې یې وکړې، خو الله تعالی د منصور صاحب نصرت وکړ په ټولو ډګرونو کې پر معلوم او پټ دښمن بریالی شو. منصور صاحب د دښمن بدې ارادې درک کړې وې او په یو وینا کې وویل چې: »موږ ته دخپلو سرونو تر حفاظت د خپلو اهدافو ساتنه لومړیتوب لري.« منصور صاحب د زمان او مکان په ډیرو سختو حالاتو کې د ډیرو فشارونو او تهدیدونو سره سره د امارت د لا قوي کولو او د دښمن د ټکولو په موخه خپلې هڅې جاري وساتلې.

شهید امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور تقبله الله اسلامي امارت په پوځي او سیاسي ډګرونو کې قوي کړ، د امارت د فعالیت داخلي او بهرنۍ چارې یې منسجمې او ځواکمنې کړې، د دښمنانو ډیرې دسیسې او حربې یې شنډې کړې، د مرحوم امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله تر وفات وروسته یې د دښمن هغه ارمان او پلان چې اسلامي امارت متلاشي کړي، شنډ او نیمه خوا کړ او اسلامي امارت یې لا متحد، منظم او قوي کړ.

الله تعالی دې شهید امیرالمؤمنین د انبیاوو، صدیقینو، شهداوو او صالحینو په انعامونو ونازوي، امین یا رب العالمین!



# وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِندِ اللَّهِ..!!

په ۲۰۰۱ کال کې چې د اشغالگرو د جبر، وحشت، شور، زور او پرپاګند له لاسه نه په ځمکه کې میږي حرکت کولای شوای او نه په هوا کې مرغه پر وهلی شوای، د امریکا پر مصنوعي زبرځواکۍ ایمان لرونکي ګوډاګیان بیا تر هغوی هم څو قدمه وړاندي ول؛ دوی سل سلنه باور درلود چې د امریکا په وړاندي مقاومت له غره سره سر جنګول دی.

مګر چاچې دا لاره خپله کړه، او د متجاوز، کافر په وړاندي يې مقاومت خپله ایماني فریضه وبلله؛ هغوی پوهیدل چې اصل ځواک امریکا نه بلکي الله دی، او دا د الله وعده ده چې «وَكَانَ حَقًّا عَلَيْنَا نَصْرُ الْمُؤْمِنِينَ...» دا ډله خلک که څه هم ناتوانه وو، د واک او ځواک له پلوه يې له مقابل دښمن سره ځان د مقایسې وړ نه باله، مګر د الله تعالی پر وعده يې سل سلنه ایمان درلود چې د حق د لارویانو مرسته به ضرور کوي.

هغوی په دې متیقین ول چې الله تعالی به د مسلمانانو د نیکپالۍ همدا امیدونه مړاوي کیدلو ته نه پریږدي، بلکي په غیرمترقبه، مبینو فتوحاتو او نصرتونو به يې ونازوي...« وَمَا النَّصْرُ إِلَّا مِنْ عِندِ اللَّهِ ....الآية» یوازي الله تعالی د خپلو مؤمنو بندګانو نصرت کوي.

همغه و چې د آزادۍ د لاري د سپیڅلو مجاهدینو د قربانیو په برکت نن افغان ولس پر یو داسي ستېج ولاړ دی چې د جهاد ستر عبادت او بې ساري قربانیو يې ښه رنګ راوړی.

اوس چې د فتوحاتو کومه غیرمترقبه لړۍ روانه ده، او په ډلو ډلو د صلیبي یرغلګرو روزل شوي ځوانان له جګړې لاس اخلي او د مجاهدینو غیږې ته ځان رسوي؛ دا د دې ثبوت دی چې د الله تعالی نصرت د امریکا او ناټو تر ځواک ډېر اوچت دی. الله تعالی خپله وعده ریښتیني کړه، که څوک عقل ولري.

جنګ ځپلی افغانستان ډېر ژر د آزادۍ له ستر نعمت څخه د برخمن کیدو په حال کې دی، او د یو سوکاله راتلونکي د زیری اوریدلو په تمه دی.

چې دا د الله تعالی یو عظیم نعمت دی او د نعمت تقاضا دا ده چې مسلمانان به د الله تعالی شکر اداء کوي. « لَئِن شَكَرْتُمْ لَأَزِيدَنَّكُمْ وَلَئِن كَفَرْتُمْ إِنَّ عَذَابِي لَشَدِيدٌ...» د شکر اداینه دا ده چې په راتلونکي کې د هیواد د جوړولو په تکل مجاهدین او ولس نور هم سره یو موټی شي، ترڅو په ګډه د یو مستحکم اسلامي نظام د بنسټ ایښودو لپاره کار وکړي.

برعکس دا به لویه ناشکري وي چې د قدرت غوښتني او خپلو نفسي خواهشاتو په طلب کې د دغه ستر نعمت ناقدري وشي، او د بیا لپاره دا ځوریدلی ولس د بهرنیو د یرغل او یا د کورنیو بدمرغیو ښکار وګرځول شي.

پای ....!!



# د شهید منصور صاحب
# یو ویاړمن موقف

قاري عبدالستار سعید

د خوځښتونو عمر هم د انسان د فردي ژوند په څېر وي، چې سړې تودې، لوړې او ژورې، فرصتونه او ابتلاوې او بېلابېل حالات ورباندې راځي. د افغانستان په اسلامي امارت له راغلیو ابتلاوو سخت ترینه ابتلاء د سپتمبر د یوولسمې له پیښو وروسته هغه نړیوال اشر و چې له شرقه تر غربه، د ناټو له سرلارو بیا د وارسا تر پاټې شونو د اسلام ټول دښمنان په اسلامي امارت راوبلوسیدل.

له هغه وروسته د اسلامي امارت لپاره دوهمه امتحاني مرحله ۱۳۹۴ لمریز کال و چې له ۲۰۱۵ میلادي کال سره سمون خوري. په دې کال هم بېلابېلو فتنو له مختلفو خواوو د اسلامي امارت په وړاندې سرونه راپورته کړل چې دلته به یې یوه بیلګه راواخلو.

۲۰۱۵میلادي یا ۱۳۹۴ لمریز کال د اشرف غني د واکمنۍ لومړنی کال و، نوموړي چې یوې خوا ته یې له امریکا سره امنیتي تړون امضاء کړی و، بل اړخ ته یې په داخلي او منطقوي کچه د اسلامي امارت د کمزوري کولو لپاره په خورا ژوره او سنجول شوې طریقه کار پیل کړ. اشرف غني وتوانید چې د امریکا، چین او پاکستان په ګډون د (څلور اړخیز فورم) تر عنوان لاندې یو نوی بهیر رامنځته کړي چې هڅه به کوي په اسلامي امارت بېلابېل فشارونه راوړي او (طوعا یا کرها) یې د خبرو میز ته کینوي.

د دې فورم فعال لوبغاړي د افغانستان لپاره د امریکا خاص استازی ریچارد اولسن، د پاکستان د وزیر اعظم د بهرنیو اړیکو مشاور سرتاج عزیز، د افغانستان لپاره د چین خاص استازی دینګ شیجون او د اشرف غني د خارجه وزارت مرستیال حکمت خلیل کرزی و. دا بهیر چې مطبوعاتو هم پراخ انعکاس ورکاوه، په ډیر قوت پیل شو. کابل او اسلام اباد ته د دواړو هیوادو د بېلابېلو سیاسي چارواکو، پوځي مشرانو او استخباراتي لوړرتبه مسؤلینو سفرونه د هرې ورځې خبره وګرځیده. رسنیو مسلسل ویل چې هغه ده د څلور اړخیز فورم له لارې طالبان په لومړي ځل له اشرف غني سره مخامخ مذاکراتو ته حاضریږي. خو په عمل کې هیڅ هم نه معلومیدل. څلور اړخیز فورم حتی دوه ځله هڅه وکړه چې د د جعلي یا اجباري مذاکراتو نمایش هم وړاندې کړي. یو ځل د طالبانو له جعلي استازو په استفاده د چین د ارومچي په هوایي ډګر کې کې د مذاکراتو یوه نمایشي غونډه دائره شوه، بل ځل د پاکستان په مري کې ورته جعلي مذاکرات جوړ شول، رسنیو خبر ورکړ چې په لومړي ځل طالبان د اشرف غني له استازو سره مخامخ خبرو ته کښېنستي خو په قطر کې د اسلامي امارت دفتر په دې مذاکراتو کې د مسؤلو افرادو شمولیت رد کړ.

دغې فضا سازۍ د نابلدو خلکو ذهن ته دا خبره اچولې وه چې طالبان واقعا د څلور اړخیز فورم د فشار په لړ کې مذکراتو ته حاضر شوي دي. رسنیو په همدې اساس له طالبانو سره د مذاکراتو د دوهم پړاو خبرې کولې. خو هغه څوک چې طالبان یې سم پیژندل او په اړه یې واقعي معلومات درلودل، هغوی دا ټولې خبرې بې بنیاده بللې. په هر حال

په همدې سلسله کې که یوې خوا ته د څلور اړخیز فورم ګرمې غونډې او تبلیغاتي کمپاین روان و، بل اړخ ته به طالبانو بېلابېل فشارونه هم تر ټولو وروستي حد ته زیات شوي وو. د اسلامي امارت نوی مشر امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور په څو جهتونو کې له له نابلده جنجالونو سره په مبارزه بوخت و. یوه اړخ ته داعش سر راپورته کړی و. په طالبانو یې د کفر او شرک ټاپه لګولې وه، له بغداد یې د اطاعت او بیعت غوښتنې او ګواښونه رالیږل او محلي پیروان یې چې د اسلامي امارت له نرمۍ او زغم نه په استفاده یې یو څه سیمې نیولې وې دومره له غروره ډک و چې یوه ټیټ پوړي ډلګۍ مشر یې لوی امارت ته د (اسلم تسلم) پیغامونه رالیږل.



بل اړخ ته د ملا محمد رسول، عبدالمنان نیازي او نورو اختلاف کوونکو بلوا هم په اوج کې وه، د امارت دښمنانو ورته تبلیغاتي کمپاین چلاوه او له نامعلومو استخباراتي چینلونو يې تغذيه روانه وه. په عين حال کې اسلامي امارت په اقتصادي برخه کې هم له ګڼو ستونزو سره مخامخ شوی و، ځکه یو شمیر مضرو او مخالفو خلکو تبلیغات کول چې عام مسلمانان دې اسلامي امارت ته بسپنې نه ورکوي ځکه امارت يې د دوی په خبره په (خپلمنځي جنګونو) لګوي. له امارت سره د قطر دفتر د مشر سید طیب په پریکون سره دا ستونزه نوره هم پراخه شوې وه.

په دې ټولو ستونزو سربیره د څلور اړخیز فورم لخوا د اجباري مذاکراتو غوښتنه د اسلامي امارت ته یو بل لوی سرخوږی و چې اسلامي امارت يې یو ځل بیا د خپل حریت او استقلال ثابتولو له ازمون سره مخامخ کړی و.

د ۱۳۹۴ لمریز کال په وروستیو کې چې څلور اړخیز فورم درې غونډې کړې وه او څلورمه يې په کابل کې دائریدونکې وه، د دې غونډې اجنډا دا ټاکل شوې وه، چې د سولې لار نقشه نهايي او له طالبانو سره د مذاکراتو وخت او ځای په کې معلوم شي. معنی دا چې نورې ټولې خبرې نهايي شوې بلل کېدې. دا وخت له کمو خلکو پرته هر چا دا منلې وه چې بالاخره که د طالبانو زړه وي او یا نه، په دې مذاکراتو کې به حتما ګډون کوي. د کابل د ټيلويزيونونو صاحب نظرانو هم همدا خبره تکراروله اما هغه ځوک چې طالبان سره سم پیژندل هغوی بل څه ویل.

د بیلګې په توګه انجنیر نظر محمد مطمئن یوه ورځ د کابل په یوه ټلویزون کې د طالبانو له مخالفو صاحب نظرانو سره شرط وتاړه چې که طالبانو واقعا په دې پروسه کې ګډون وکړ او ستاسو په خبره مذاکراتو ته راغلل، نو له شک پرته د پاکستان غلامان دي. مګر که طالبانو ګډون ونه کړ او دا پروسه هم د پخوانیو تزویري پروسو په شان ناکامه شوه نو باید ټول راسره ومنئ چې طالبان واقعا خپلواک او په خپلو تصامیمو کې سل فیصده استقلال لري.

په همدې حال کې بالاخره د ۱۳۹۴ لمریز کال د کب په میاشت کې د څلور اړخیز فورم څلورمه غونډه د کابل په ارګ کې پیل شوه چې افتتاحیه وینا يې د ګډ حکومت د بهرنیو چارو وزیر صلاح الدین رباني وکړه. د غونډه اجنډا د دوی په خبره (د سولې لار نقشه) نهايي کول بلل شوي وو چې بالاخره يې دغه لار نقشه نهايي کړه. هغه دا چې د غونډې په ترڅ کې د راتلونکو مذاکراتو ځای او وخت دواړه تعین شول. د غونډې په توافق نامه کې راغلي وو چې طالبان به دوه اونۍ وروسته په اسلام اباد کې د مذاکراتو په پروسه کې رسما ګډون وکړي.

دا ځل سترګې د طالبانو اړخ ته متوجې وې او هغوی چې د طالبانو په حریت یې شک درلود، پرلپسې يې د امارت د اسلامي امارت رسمي پاڼه څارله چې څرنګه غبرګون به ښيي. د کب د میاشتې په پنځلسمه نیټه د اسلامي امارت د زعیم ملا اختر محمد منصور صاحب په مخامخ امر د اسلامي امارت لخوا لاندې اعلامیه صادره شوه.

(دا چې د مذاکراتو او څلور اړخیزو غونډو جریان او تبلیغات په قوت کې روان دي او له دې سره سره دا اوازې هم خپریږي چې په راروانو غونډو کې به د اسلامي امارت استازي د عالیقدر امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور په اجازه ګډون کوي.

موږ دا ډول افواهات ردوو او په صراحت سره وایو چې د اسلامي امارت محترم زعیم په دې غونډو کې د ګډون لپاره هیڅ چا ته هم وظیفه نه ده سپارلې او نه هم د اسلامي امارت رهبري شورى په دې غونډو کې د ګډون فیصله کړې ده ، اسلامي امارت لکه څرنګه چې يې د پګواش په کانفرانس کې وضاحت وکړ اوس یو ځل بیا هم هغه دریځ تکراروي، تر څو چې د افغانستان اشغال پای ته نه وي رسیدلی، تور لستونه نه وي ختم شوي او مظلوم بندیان نه وي ازاد شوي، بې مفهومه او تیر ایستونکې مذا کرات به هیڅ نتیجه هم ور نه کړي، موږ په رسنیو هم غږ کوو چې له بې اساسه او له وا قعیت څخه لیري راپورونو خپرولو څخه دې ډډه وکړي او هر هغه خبر چې د اسلامي امارت د رسمي ویندویانو او سیاسي دفتر له لوري نه وي تائید شوی، هغه دې اسلامي امارت ته نه منسوبوي.

د دې اعلامیې او ډانګ پېیلي دریځ په اعلان سره نه یوازې اسلامي امارت په سخت ترین حالت کې یو ځل بیا خپل حریت او د تصمیم ګیرۍ استقلال ثابت کړ، بلکې د خلور اړخیز فورم پرسول شوې پروسه یې هم داسې پنچره کړه چې بیا یې تر اوسه چا نوم وانخیست. د شهید امیر المؤمنین ملا اختر محمد منصور دغه ویاړمن او صریح موقف نه یوازې په امارت دننه پراخ استقبال شو، بلکې په نړیواله کچه هم د اسلام او استقلال مینه والو پرې خوښي وښوده. د بېلګې په توګه په جرمني کې میشت لیکوال محمد امین بسمل چې چپي سابقه هم لري، خو د طالبانو مستقلانه موقف دومره متأثر کړ چې په دې اړه یې اوږده لیکنه وکړه او عنوان یې ورکړ (طالبه لا دې په همت برکت شه) وتلي څېړونکي ډاکټر روستار ترکي د اروپا میشتو افغانانو په استازیتوب طالبانو ته د دې ویاړمن موقف له امله د مبارکۍ پیغام ولیږه او دا یې یو تاریخي موقف وګاڼه. د کابل یو شمیر صاحب نظرانو لکه شهید مژده صاحب او نظر محمد مطمئن صاحب د طالبانو دغه لنډکۍ اعلامیه په خپلو مخالفینو یو درونند سیاسي ګوزار وګاڼه.

د اوریدو له قراره د اسلامي امارت مرستیال خلیفه سراج الدین حقاني صاحب د دې اعلامیې له نشر- وروسته ویلي و چې د منصور صاحب دا مستقلانه دریځ او اعلان د لوی ملا صاحب له هغه موقف سره برابر دی چې د نړیوالو فشارونو په اوج کې یې د شیخ اسامه بن لادن له سپارلو اعراض وکړ او خپل د پریکړو استقلال یې وساته.

د سیاسي رهبرانو د شناخت او ارزولو تر ټولو مهم معیار د هغوی مواقف ګڼل کیږي. شهید منصور صاحب که څه هم لږه موده یې د اسلامي امارت مشري وکړه اما په خپلو قاطعانه اقداماتو او جرأتمندانو پریکړو سره یې اسلامي امارت ته له شړیدلو نجات ورکړ. تاریخ به د نوموړي دغه مواقف حتما په زرینو تورو ولیکي.

رحمه الله و تقبل شهادته

# امنیتي پوستې که د لنډغرو مرکزونه؟

ج ـ هوتک

د هیواد له هر کونج څخه د امنیتي مرکزونو تر نامه لاندې د شر او فساد ځالې په ټولېدو دي. ولس په ډېر ویاړ سره ددې ځایونو په له منځه وړلو کې مرسته کوي؛ خو د امنیت شورا خیاطان او د اشغال په دوره کې په تړلو سترګو را لوی شوي روشنفکران! بیا خلکو ته د احمقانو خطاب کوي او تور پورې کوي، چې ملي شتمنۍ! چور کوي.

دوی دې ته فکر نه کوي، چې دا زر خیزې ځمکې نه د ناټو ملکیت وو، چې خپلو اجیرانو ته یې ورکړې وې او نه رولا غني له لبنان راوړې وې، چې په خپلو لنډه غرو عسکرو یې ووېشلې. ددې ځمکو هره ټوټه ددې ولس په خولو اباده شوې وه، چې د عسکرو تر نامه لاندې د حکومت ازاریانو پکې د خپلو فحاشیو مرکزونه جوړ کړي وو، له همدې ځمکې یې د ولس پر کورونو توغندي ویشتل، په همدې پاټکونو د ولس اولادونه له هغوی بیلوک کېدل او همدا ځایونه و، چې خلکو ترې یوه شپه ارام نشوای کولای.

دا چې اوس ددې سیمو واک بیرته د ولس ګوتو ته رسېږي، حق یې دی چې هر څه یې له ځان سره یوسي.

د حکومت خیاطان دې پوه شي، چې د غرب په متو له ولاړ دې نظام سره مبارزه او جهاد د دیني نصوصو په اساس پیل شوی او د همدې دیني ارشاداتو له مخې تاسو زموږ د ښمنان او ولس زموږ رعیت دی.

دین موږ ته راښیي، چې که د خپل دښمن مال دې لاسته ورسېد یا به فئ او یا هم غنیمت وي، چې یو څه یې په مجاهدینو او پاتې یې بیرته په همدې ولس وېشل کېږي.

د شر او فساد ددې مرکزونو هر څه ددې ولس دي. د لنډه غرو دا مرکزونه نه ملي شتمني ده او نه هم ولس ترې خیر لیدلی، هر څوک چې یې په ورانولو کې مرسته کوي، زه باوري یم ددنیوي اجر تر څنګ به یې خدای په اخرت کې هم نیکه بدله ورکړي.

خیاطان که ربښتیا هم د ملي شتمنیو په چور خفه کېږي، نو رولا ګله دې راوګرځوي، چې میلیونونه ډالر یې لبنان ته قاچاق کړل، فضلي دې راوګرځوي، چې د اتلس رقمه غوښو تر نامه لاندې یې بیت المال چور کړ، محب دې راوګرځوي، چې خپلې امریکایي ښځې ته یې د پوره یوه کنډک د عسکرو معاش ټاکلی.

ولسه! کور مو ودان، د لنډه غرو د مرکزونو په ورانولو کې ستاسو پوره همکاري له دې نظام سره ستاسو پریکون په ډاګه کوي او ارګ نشینانو ته دا وربښیي، چې د ولس د قهر ګراف کوم حد ته پورته شوی.

د هیواد له هر کونج څخه د امنیتي مرکزونو تر نامه لاندې د شر او فساد ځالې په تولیدو دي. ولس په ډېر ویاړ سره ددې ځایونو په له منځه وړلو کې مرسته کوي؛ خو د امنیت شورا خیاطان او د اشغال په دوره کې په ترلو سترګو را لوی شوي روشنفکران! بیا خلکو ته د احمقانو خطاب کوي او تور پوري کوي، چې ملي شتمنۍ! چور کوي.

د شر او فساد ددې مرکزونو هر څه ددې ولس دي. د لنډه غریو دا مرکزونه نه ملي شتمني ده او نه هم ولس ترې خیر لیدلی، هر څوک چې یې په ورانولو کې مرسته کوي، زه باوري یم ددنیوي اجر تر څنګ به یې خدای په اخرت کې هم نیکه بدله ورکړي.

# د فساد او وحشت ځالي

## په تولیدو او ړنګیدو دي!!

ج ـ هوتک

دوی دې ته فکر نه کوي، چې دا زر خیزې ځمکې نه د ناټو ملکیت وو، چې خپلو اجیرانو ته یې ورکړې وې او نه رولا غني له لبنان راوړې وې، چې په خپلو لنډه غرو عسکرو یې وویشلې. ددې ځمکو هره ټوټه ددې ولس په خولو ابادہ شوې وه، چې د عسکرو تر نامه لاندې د حکومت ازاریانو پکې د خپلو فحاشیو مرکزونه جوړ کړي وو، له همدې ځمکې یې د ولس پر کورونو توغندي ویشتل، په همدې پاټکونو د ولس اولادونه له هغوی بیلول کېدل او همدا ځایونه و، چې خلکو ترې یوه شېبه ارام نشوای کولای.

دا چې اوس ددې سیمو واک بیرته د ولس ګوتو ته رسېږي، حق یې دی چې هر څه یې له ځان سره یوسي.

د حکومت خیاطان دې پوه شي، چې د غرب په متو له ولاړ دې نظام سره مبارزه او جهاد د دیني نصوصو په اساس پیل شوی او د همدې دیني ارشاداتو له مخې تاسو زموږ د ښمنان او ولس زموږ رعیت دی.

دین موږ ته رابښیي، چې که د خپل دښمن مال دې لاسته ورسېد یا به فی او یا هم غنیمت وي، چې یو څه یې به مجاهدینو او پاتې یې بیرته په همدې ولس ویشل کېږي.

خیاطان که رښتیا هم د ملي شتمنیو په چور خفه کېږي، نو رولا ګله دې راوګرځوي، چې میلیونونه ډالر یې لبنان ته قاچاق کړل، فضلي دې راوګرځوي، چې د اتلس رقمه غوښو تر نامه لاندې یې بیت المال چور کړ، محب دې راوګرځوي، چې خپلې امریکایي ښځې ته یې د پوره یوه کنډک د عسکرو معاش ټاکلی.

ولسه! کور مو ودان، د لنډه غریو د مرکزونو په ورانولو کې ستاسو پوره همکاري له دې نظام سره ستاسو پریکون په ډاګه کوي او ارګ نشینانو ته دا ورښیي، چې د ولس د قهر ګراف کوم حد ته پورته شوی.

په سوله کې دشوکمارو تاوانونه!

په افغانستان کې هره ورځ د مالیاتو او ګمرکاتو څخه شا او خوا ۸ملیونه ډالره غلا کیږي؛ دا هغه غلا ده چې هم عام ولس په خبر سو او هم ئې دولت مني؛ په دې غلا کې د ارګه نیولې بیا تر کښته اماموره پوري ټول سره شریکان دي. اوس نو تاسي فکر وکړئ چې په جنګ کې دچا ګټې دي او په سوله کې څوک خاشې ماتوي؟



# دهیواد له نومیالي جید او محقق عالم

## شیخ الحدیث مفتي مولوي نورمحمد ثاقب حفظه الله سره

مرکوال: م عزیزي

## دده د علمي سیر ، خدمتونو او تحقیقي لاسته راوړنو په اړه په زړه پورې مرکه

درنـو اورېـدونکو او ښـاغلیو لوسـتونکو! دخوښـۍ او سعادت ځای بولم چې نن د هیواد او سیمې پر کچه له یوه داسې نومیـالي، جیـد، محقـق او بزرگـوار عـالم سره چـې د زرګونو علماوو، مدرسینو استاذ او مربي دی ناسته او مرکه لرو، له دې مرکې څخه مو هدف دادی چې د جناب شیخ صـاحب [دامت برکاتهم العالیة] د علمـي سـیر، فیوضـاتو او تحقیقي لاسته راوړنو په باب لـه ده څخـه معلومـات ترلاسـه کړو.

هو! دا درونـد شخصیت د افغانستان د اسلامي امـارت پخوانی قـاضي القضـات، د مرکـزي دار الافتـاء او سـترې محکمې مشر فضیلت مـآب شیخ القرآن و الحـدیث مفتـي مولانا نور محمد ثاقب صاحب [حفظه الله تعالی] دی.

جناب شیخ صاحب! ستاسو مشکور او منندوی یو چې زمونږ غوښتنه مو ومنله، قیمتي وخت مو راکړ، تر څو ستاسې په علمي ژوند او ښې قیمته تالیفاتو مونږ.اودرانه لوستوال او اوریدونکي اګاهي ترلاسه کړو.

نو وړاندې تر دې چې د پوښتنو لړۍ پیل کـړو، ستا پـه اجازه به دا معلومات له خوږو مینه والو سره شریک کړو، چې جناب شیخ صاحب پوره اووه پنځـوس (۵۷) کالـه وړانـدې د افغانستان سمنګان ولایت د تاشقرغان په سیمه کې دې دنیـا ته سترګې غړولي، په قوم دولت زی دی، ابتدایي او منځنـۍ زده کړې یې په خپله سیمه کې له استاذانو کړې دي، لـوړې زده کـړې او احادیث یـې د هجـرت دیـار (پاکسـتان) پـه مختلفو مدارسـو کـې ترلاسـه کـړي او فراغـت یـې پـه ۱۳۶۳ هجري لمریز کال کې چې د ۱۴۰۴هـجري قمـري کـال سره سمون خوري په ( دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک) کې شوی دی. د فضیلت پګړۍ د هغـه وخـت د نومیـالیو محـدثینو او اولیـاء کرامـو هر یو شـیخ الحـدیث مولانـا عبـدالحق او شـیخ الحـدیث مولانـا مفتـي محمـد فریـد [ نوراللـه مرقـدهم] په مبارکو لاسونو ورپه سر کړی شوې ده.

جناب شیخ صاحب ! د ړومبۍ پوښـتنې پـه توګـه کـه راته ووایاست چې ویل کیږي تاسې د خپل فراغت په کال نه یوازې دا چې د حقانیې دارالعلوم د لویې دورې د فـاضلانو په قطار کې پـــه لومړۍ درجه فایز شوي یاست؛ بلکـــې د پاکستان د وفاق المـدارس پـه ازموینـو کـې مـو هـم دا شرف ترلاسه کړی او په ګـرد پاکستان کې د لومړي توب اعزاز هم الله درپه برخه کړی دی. کـه پـه لنـډو الفاظو راته ووایاست چې ددې سترې علمي بریا رمز مو څه و؟ ستاسې خپل زیـار، د استاذانو او مور پلار دعاګانې او کـه نـور لاملونـه وو او کلـه مو چې حقانیـه مدرسـې تـه دومـره لـوی اعـزاز راوړ ، نو ددې لوی علمي مرکز د استاذانو او منتظمینو تاثرات په دې هکله څه وو؟

جواب: الحمدلِله فی البدایة والنّهایـة، والصّلوٰة والسّلام علی خیر مَن اُرْسِلَ بالهدایة، وَعَلی آلِهِ وأصحابهِ نُجوم الرّوایـة وشُموس الدّرایة.

امّا بعد! محترمه! ستاسو د پوښـتنې پـه جـواب کـې بـه داسې عرض وکړم: هـو! پـه ۱۴۰۴هــ ق، مطـابق ۱۳۶۳هــ ش، مصادف ۱۹۸۴ ع کال کې په جامعه دارالعلوم حقانیه اکـوړه خټک کې زمونږ دورهٔ حدیث یعنی لویـه دوره وه، پـه دې اړه خو خـبرې او تفصـیلات ډېـر دي، لکـن زه بـه یـو څـو غټـې او

مختصرې خبرې وکړم، کله چې د کال په پای کې د وفاق المدارس العربيه لخوا سالانه امتحان واخيستل شو، د الله تعالى جلّ جلاله په لوی فضل او کرم ما عاجز بنده د وفاق المدارس العربيـة د لـوېې دورې پـه امتحـان کـې پـه ټـول پاکستان کې لومړی پوزيشن ترلاسه کړ او اوّل نمبر شوم او د مرتبة الشّرف الأُولى اعزاز راته الله جلّ جلاله راپه برخه کړ ( الحَمدللهِ حَمداً کثيراً) چې د جامعة العلوم الاسلامية بنوري ټاؤن کراچۍ حفيظ الرّحمن دويم نمبر او د هماغې جامعې غلام مرتضى « اعوان » درېيم نمبر راغلي وو.

په دغه امتحان کې نه تنها د پاکستان د څلورو واړو صوبو، آزاد کشمير او افغانستان د دورهٔ حديث فضلاء شامل وو، بلکې د لسو، دولسو نورو عربي او عجمي هېوادونو څخه د لته د درسونو لپاره راغلي ډېر فارغين او فضلاء هم په کې شامل وو.

هغه وخت زمونږ د دورهٔ حديث استاذان: بقية السّلف، سابق مدرس او استاذ الحديث د دارالعلوم ديوبند او د جامعه دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک باني شيخ الحديث حضرت مولانا عبدالحق رحمه الله او شيخ الحديث مفتي اعظم حضرت مولانا مفتي محمدفريد رحمه الله او زبدة الاتقياء استاذ الحديث حضرت مولانا فضل اِلٰهي رحمه الله وو، د عاجز بنده ددغې علمي بريا او اعزاز رمز نور څه نه ؤ د الله تعالى خصوصي کرم، د استاذانو علوم، فيوضات او دعاګانې، د مور او پلار د دعاګانو برکت او د عاجز بنده د الله له طرفه راکړی ذهني صلاحيت، همّت او يو څه اندازه محنت وو.

کله چې د ټول ملک په سطحه د وفاق المدارس العربية نتيجه اعلان شوه، چې په ډېرو اخبارونو کې لکه: روزنامه جنګ کراچي، روزنامه جنګ لاهور، روزنامه حريت کراچي او داسې نورو اخبارونو کې هم نشر او اعلان شوه نو د جامعه دارالعلوم حقانيه په استاذانو، منتظمينو او ټولو منسوبينو کې ډېره زياته خوښي خپره شوه؛ ځکه چې نهه(۹) کاله بعد دارالعلوم حقانيه په وفاق کې اول پوزيشن حاصل کړ، بيا د دارالعلوم حقانيه اکوړه خټک باني زمونږ استاذ محترم شيخ الحديث حضرت مولانا عبدالحق رحمه الله په يوه لويه جوړه شوې غونډه او اجتماع کې ما بنده ته په خپلو مبارکو لاسونو ډېر ګټور او ارزښتناک کتابونه په انعام کې راکړل او هم يې د خبرو په ترڅ کې بنده ته وويل: دا دارالعلوم حقانيه چې مونږ جوړه کړې دا مو يوه پګړۍ په سر اېښې ده؛ خو کله دا پګړۍ زمونږ له سر نه لوېږي چې تاسو غونډې خلک يې بيرته راته په سر ږدي.

پوښتنه: مونږ په هغه وخت کې ابتدائي کتابونه لوستل او د ابتدائيه درجې زده کړيال ؤ، البته دومره پوهېدلو چې تاسې کله تدريس ته مخه کړه نو الله تعالى ډېر شهرت او ځانګړی مقام درکړ، کومې مدرسې ته به مو چې د تدريس لپاره مخه کړه د هغې مدرسې په درسګاوو کې به طالبان نه ځايېدل، او د طلباؤ زيات ازدحام به هلته جوړ شو. نو دا راته ووایاست چې ددغه کامياب تدريس علت او مهم وجوهات څه وو که هغه درنو اورېدونکو ته بيان کړئ نو خوشحاله به شو ؟

جواب: قدرمنه ! ما بنده له فراغت وروسته متّصل په تدريس پيل وکړ، چې د تدريس په اول کال کې په دارالعلوم اسلاميه عربيه ټل کې غټ او اوچت کتابونه لکه: صدریٰ، مسلّم الثبوت، ميبذي(شرح الحکمة)، ملا حسن، سُلّم العلوم او داسې نور کتابونه زما په تدريس کې شامل وو.

د تدريس په دويم کال په هماغه دارالعلوم اسلاميه عربيه ټل کې زما په تدريس کې د معقولاتو او منقولاتو د غټو کتابونو ترڅنګ د موقوفة عليها ( وړې دورې ) د کتابونو تدريس هم شامل شو، چې په دې کال کې د دارالعلوم لخوا د وړې دورې بيضاوي شريف او مشکوة شريف ماته راکړل شول او زما په تدريس کې شامل شول.

د تدريس درېيم او څلورم کال مې په دارالعلوم هاشميه باړه کې ؤ، هلته په دويم کال چې د تدريس څلورم کال کېده ما د فنونو د غټو کتابونو او دورې دورې د يو څو کتابونو د تدريس سره د دورهٔ حديث ( لويې دورې ) د کتابونو په تدريس هم پيل وکړ، چې په دې کال کې د دغه دارالعلوم لخوا د لويې دورې ابو داود شريف ماته راکړل شو او زما په تدريس کې شامل شو.

بيا مې شپږ( ٦ ) کاله مُسَلسل يعنې د تدريس پنځم، شپږم، اُووم، اتم، نهم او لسم کلونه د حرکت انقلاب اسلامي



افغانستان په جامعه اسلامیه محمدیه چراټ کې تدریس وکړ، چې هر وخت به د لویو فنونو کتابونه، د وړې دورې کتابونه او د لویې دورې کتابونه زما په تدریس کې شامل وو.

او یوولسم کال مې بیا په دارالعلوم هاشمیه باړه کې په داسې حال کې چې د طالبانو ډیر ازدحام جوړ ؤ ډیر عالي او امتیازي تدریس وکړ. او دولسم کال د تدریس مې په دارالعلوم حقانیه امینیه جلوزو کې ؤ، چې بیا د افغانستان د طالبانو اسلامي تحریک پیل شو.

ما به په تعلیمي کلونو کې د مُسَلسل تدریس سره د هر کال په درې میاشتنۍ رخصتۍ کې هم په مُسَلسله او دوامداره توګه په لوړه او پراخه کچه تدریس کاوه، چې د کچه ګړۍ په کیمپ کې د قران عظیم الشان د تفسیر، د علم المیراث د کتابونو، د علم العروض والقوافي د کتابونو او د علم الریاضي د کتابونو دورې په کې ترسره شوې، چې لِلّه الحمد په زرګونو طلباوو استفادې وکړې، د علم الریاضي په دوره کې به ګڼ شمېر فارغین او مدرسین علماء هم شریک وو، آن تردې چې بعضې شیوخ د احادیثو به هم په کې شامل وو، طالبان به ډیر زیات وو، د علم الریاضي د دورې په وروستي کال کې به اُووه نیم سوه(۷۵۰) طالبان یوځای د بنده په درس کې ناست وو.

مونږ به د تدریس په دوران کې ډیر محنت کاوه، ما به ډیره زیاته مطالعه کوله حتی تردې چې په اکثرو کتابونو باندې به ما تر یوولسو پورې شرحې کتلې، بل د سبق او درس لپاره به مې مُنظم او مُنضَبط بیان او تقریر تیاروه، داسې به معلومېده لکه یو چاسره چې تیار لیکلی تقریر موجود وي؛ خو داسې به نه ؤ، بلکې دا به ما په خپله بیګایي له شروحو څخه را برابر او منظم کړی ؤ، او بل په درس کې به مې مشکل او مُغلق تعبیرات نه کول بلکې د طالبانو د فهم په خاطر به مې سهل او آسانه تعبیرات کول، چې ډیر کمزروی طالب به هم ورباندې پوهېده؛ نو ځکه به د طالبانو بیروبار او ازدحام جوړ ؤ، لکه تاسو چې هم د پوښتنې په ضمن کې ورته اشاره وکړه.

د طالبانو د کثرت او ازدحام به یو دوه بېلګې ذکر کړم: په جامعه اسلامیه محمدیه چراټ کې چې ما درس کاوه، ما به د مسجد په پراخه برنډه کې درس کاوه ځکه چې طالبان به په درسګاه کې نه ځایېدل. او په دارالعلوم هاشمیه باړه کې چې ما درس کاوه نو له دې وجې چې طالبان ډیر زیات وو د دارالعلوم هاشمیه مشر، صدر صاحب مولوي عبدالستار پاچا بنده ته وویل: که د درس لپاره لوډ سپیکر درته ولګوو په نورو درسګاوو کې استاذان په تکلیف کیږي او که لوډ سپیکر نه لګوو نو آواز به ونه رسیږي ټولو ته، بنده ورته وویل: غم مه کوه زما آواز اوچت دی او زه به نور هم کوشش کوم، آواز به رسیږي ان شاء الله.

پوښتنه: د خپلو هغو یو څو تنو استاذانو نومونه که راته واخلی چې تاسې تربنه د علومو او فنونو په ترلاسه کولو کې زیات فهم او فیض ترلاسه کړی دی، همدارنګه که ممکنه وي د هغو متبرکو هستیو د علمي او معنوي کمالاتو خاصې خاطرې هم راته ذکر کړئ، تر څو د اوسني دور علماء کرام او طالبان هم ترې مستفید شي او ګټه ترې واخلي؟

جواب: عزتمنده ! زما ټول ځلوبښت استاذان دي چې ټول ماته په ذهن کې مستحضر دي، اکثر ددوی وفات شوي دي او ډیر کم ددوی څخه په قید د حیات کې دي، کوم چې وفات شوي دي مهربان خدای جلّ جلاله دې ددوی قبرونه په رحمتونو او انوارو مالامال کړي او په جنت الفردوس کې دې د انبیاء کرامو علیهم السلام سره یوځای کړي او کوم چې ژوندي دي الله تعالی دې دوی ته د صحت او عافیت سره طول حیات او د مخلوق د رهنمایي لپاره مزید فرصت او توفیق ور نصیب کړي..

زمونږ استاذان که په افغانستان کې وو او که په پاکستان کې الحمدلله ټول جیّد او برجسته علماء کرام وو؛ خو لکه څنګه چې تاسو غوښتنه وکړه زه به د بیلګې په توګه د یو څو استاذانو د علمي او معنوي کمالاتو یو څو خاطرې بیان کړم: په دارالعلوم اسلامیه عربیه ټل کې زمونږ استاذ محترم جامع المعقول والمنقول حضرت علامه مولانا عبدالسّلام صاحب هزاروي رحمه الله ډیر لوی او متبحر عالم ؤ، د درس به یې داسې کیفیت ؤ چې په یوه مسئله کې به یې تحقیق شروع کړ دابه داسې ؤ لکه لږ غوندې پُنبه چې وي او بیا داسې ښه ورژول او وسپړل شي نو داسې ډیریږي او زیاتیږي آن تردې چې دا ټوله کوټه ترې ډکه شي، نو ده به هم داسې ددې مسئلې تفصیل وکړ او ټول ابعاد به یې بیان او وڅیړل چې یوه لویه تفصیلي مجموعه به ترې جوړه شوه او بله داوه چې دده علم به داسې ؤ لکه محسوس او مُجَسّم، چې درس نه به طالبان راپاڅېدل هر یو به دا محسوس کوله لکه په ذهن کې یې چې د یو مُجَسّم شي په شکل کې علم را اچول شوی وي.

او په دارالعلوم انوارالعلوم ګجرانواله پنجاب کې زمونږ استاذ محترم حضرت علّامه مولانا قاضي حمیدالله صاحب د چارسدې د ترناؤ، هم ډیر لوی او متبحر عالم ؤ، ده به د وړې دورې سره د فنونو غټ کتابونه هم تدریس کول چې ټول به شلو (۲۰) کتابونو ته رسېدل، ټوله ورځ بلکې د شپې په یوه ډیره برخه کې به هم په تدریس لګیاؤ او د مطالعې حال به یې داؤ چې د خیالي غوندې مشکل کتاب به یې د کور نه د راکوزېدلو په حال کې په زینه کې مطالعه کولو، کور یې د مدرسې په بره چت کې ؤ، روزانه به چې سهاردرسونو ته راکوزېده نو په زینه کې به یې یو یو قدم را اخیسته او خیالي به یې مطالعه کوله، نو تخمیناً په یوه دقیقه کې به یې مطالعه کړه، داسې د نورو کتابونو مطالعه به یې هم ډیره سریعه او په کم وخت کې وه او په عین حال کې به یې روزمره درې ځایه د قران کریم ترجمه او تفسیر کاوه، د ماښام لمونځ نه پس به یې د همدې انوار العلوم په جامع مسجد کې ترجمه کوله، بیا به یې د ماسخوتن له لمانځه وروسته د ښار په یو بل مسجد کې ترجمه کوله او بیا به یې د سهار لمونځ د ښار یو بل مسجد ته رساوه او هلته به یې د سهار له لمانځه بعد ترجمه کوله، ډیر طاقت او همت الله تعالی ورکړی ؤ.

او په جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک کې زمونږ استاذ محترم بقیة السّلف شیخ المشائخ حضرت اقدس مولانا عبدالحق رحمه الله د شیخ العرب والعجم حضر ت علّامه مولانا حُسَین احمد مدني رحمه الله خاص شاګرد ؤ، وضع او رفع، سیرت او صورت، اخلاق او عادات، د درس طرز او طریقه او هرڅه یې د حضرت مدني رحمه الله په شان وو.

مونږ ته یې په دورهٔ حدیث کې بخاري شریف له کتاب المغازي څخه او ترمذي شریف له ابواب الحج څخه شروع کړې وه، په درس کې به یې داسې فصاحت او بلاغت او داسې فیض او اثر موجود ؤ چې کوم حالات او واقعات او کوم مواضع او مقامات به یې په درس کې ذکر کول داسې به په ذهن، دماغ او سترګو کې جاګزین شول لکه بالکل چې مونږ ددغو حالاتو، واقعاتو او مقاماتو په سترګو مشاهده کړې وي او هلته ور وستل شوي یو.

او په جامعه دارالعلوم حقانیه اکوړه خټک کې زمونږ استاذ محترم قُدوة العلماء فقیه العصر شیخ الحدیث حضرت اقدس مولانا مفتي محمدفرید رحمه الله د شیخ المشائخ زبدة الأتقیاء مُحدّث کبیر حضرت اقدس مولانا نصیر الدّین غُور غُشتوي رحمه الله خصوصي شاګرد ؤ، وضع او رفع، عادات او عبادات او هرڅه یې ټول د خپل استاذ غُور غُشتو مولانا صاحب په طرز او طریقه وو.

زمونږ د دورهٔ حدیث اکثر کتابونه له دوی سره وو، حضرت مفتي صاحب رحمه الله ته الله تعالی لوی تبحر علمي، جامعیت او روحانیت ورکړی ؤ، د درس یې دا شان ؤ چې د دورهٔ حدیث د پای او اختتام پروخت ما بنده داسې محسوس کړه چې مونږ سرکال نه تنها احادیث مبارکه وویل بلکې له دې مخکې په طالب العلمۍ کې چې مونږ کوم علوم او فنون ویلي وو هغه هم ټول مکرر شول.

د حضرت مفتي صاحب نه به مونږ د درس په دوران کې او هم په نورو اوقاتو کې داسې علمي نُکات او پُرمغز کلمات او جُملې اورېدلې چې ډیرې دقیقې او عمیقې، د کاڼي د کرښې په شان پَخې او مضبوطې، قناعت ښونکې او اثرناکې به وې، ډېر مثالونه یې مونږ ته یاد دي؛ خو د هغو بیانول ډېر وخت غواړي، نو ځکه مونږ په دغه اجمالي یادونې اکتفاء وکړه.

پوښتنه: جناب شیخ صاحب! د اوسني وخت تدریسي- بهیر تـه پـه کـوم نظـر گـوری؟ د طالبـانو د اسـتعدادونو پـه پیاوړتیا او ذهانت کې باید استاذان کوم ټکي پـه نظـر کـې ولـري؟ اوسـني مصـروف اوضـیق وخت تـه پـه کتلـو داسـې ذهنیت چلیږي چې تعلیمي مروج نصاب اوږد دی خصوصـا د معقولاتو، ریاضي، او حکمت کتابونه بایـد کـم کـړی شي او د ضرورت په اندازه ولوستل شي نو تاسې دغـو غوښـتنو تـه پـه کوم نظر گوری؟

جـواب: محترمـه وروره ! دا یقینـي ده چـې د پخـوا پـه نسبت اوسنی علمـي بهیـر ډیـر ضـعیف، پَـځ او سـطحي دی، وجوهـات یـې ډیـر دي او ټولـو تـه تقریبـاً معلـوم دي، کـه همداسې حال وي خدا ناخواسته علم به کال په کال تـدریجاً نور هم ضعیف شي چې بالآخره به د زوال کندې تـه ولـویږي، که نور هیڅ نه وي په دې خِطّه او منطقـه کـې چـې د علـم او درس او تدریس کوم طرز او طریقه ده دا به خرابه او بـالآخره له منځه ولاړه شي او علم به د نړۍ د نورو ملکونو په شان پـه کتابچو کې د یو څو لیکلو یاد داشتونو څخه عبارت شي او د کتابونو د ویلو همّت به په چا کې پاتې نـه شي، بناءً اربـاب د مدارسـو: مهتممـین، منتظمـین او ټـول اسـتاذان بایـد جـدّي متوجه وه اوسي او د علـم د ساتنې او پیاوړتیـا لپـاره مضبوط قدمونه واخلي، هغه داسې چـې د مدارسـو اسـتقلال او آزادي وساتي او د هغو خلکو چې مدارسو او د علـم سـالم بهیـر تـه نقصـان رسـوي د هغـوی مـداخلې بنـدې کـړي او بـل داچـې کتابونه پوره ووایي، هغه کتابونه چې د هغو پـه ویلـو بـه قـوي علماء جوړېدل هغه له ویلو او نصاب څخه حذف نـه کـړي او دارنگه هر کتـاب بالاستیعاب وویـل شي او بـل د وختونـو او حاضریو پابندي لازمي کړي او بل باید د علم نه بغیر په نـورو مصروفیتونو پابندي ولگول شي ځکه د علـم سره بـل شـی نـه ځاییږي او بل د علم په دوران کې پـه دغـو موجـوده جدیـدو وسائلو بندیزونه ولگول شي، خصوصاً د موبایل په استعمال.

او داسې ویل کیږي او معلومیږي چـې د طالبـانو د علـم سره شوق او رغبت په تیزۍ سره مخ په کمېدو دی او ددوی اخلاق ورځ تر بلې خرابیږي، نو په درسونو کې باید دوی ته د علم د فضائلو او د تربیې او اصلاح خـبرې کیـږي؛ بلکـې وقتـاً فوقتاً دې ددې لپـاره ځـانگړې غونـډې جـوړیږي، نـو کـه دې اړخ ته جدي توجـه وشي هغـه مهـال بیـا د طالبـانو څخـه څـه ناڅه طمع او امید کیدای شي.

رابه شو دې خبرې تـه چـې ځینـې خلـک وایـي: اوسـنی وخت تنگ دی او مروّج تعلیمي نصـاب اوږد دی بایـد را لنـډ شي خصوصاً د معقولاتو، حکمت او ریاضي کتابونه کـم کـړل شي او د ضرورت په اندازه ولوستل شي.

نو زه دا وایم: اول خو اوسنی وخت ولـې تنـگ دی، علـم ته ولې خلک وخت نه ورکوي او دا مروّج تعلیمي نصـاب خـو هغه دی چې ددې په ویلو سره د دیوبنـد د اکـابرو پـه شـمول دا لوی لوی متبحر علـماء رامنځتـه شـوي دي، نـو ځکـه ددې اهمیت او افادیت زیات دی او د معقولاتو، حکمت او ریـاضي په اړه چې دوی وایـي: ددغـو کتابونـه دې راکـم او د ضرورت په اندازه ولوستل شي نو ددوی د خپلې خبرې نـه معلـومیږي چې ضرورت خو ورتـه شته او فضولیات نـه دي؛ لکـن پښـه داسې ده چې دا راکمیږي نو ددغـو بـه هغـه ابتـدائي کتابونـه ویـل کیـږي او بـس؛ مگـر پـه دې ابتـدائي کتـابونو هغـه زده کیږي نـه، لکـه د مثـال پـه توگـه د زرادي، نحـومیر او اُصول الشّاشي په ویلو او په دغو باندې په اکتفاء کولو سره ټول علم صرف، علم نحو او علم اصول فقه نه زده کیږي، نو بیا به هغـه ضرورت پرې څنگه پوره کیږي چې دوی وایـي د ضرورت پـه اندازه دې ولوستل شي!

او معقولاتو ته خو یقیناً ضرورت شته؛ ځکه لکـه څرنگـه چې دلائل نقلیه اهم او ضروري دي داسې دلایل عقلیه وو تـه ضرورت شته او شک نـه شـته چـې د معقولاتـو د کتـابونو پـه ویلو سره انسان ته قوت د استدلال حاصلیږي او بل زما خپله تجربـه داده چـې د معقولاتـو پـه ویلـو سره جُرئـت عِلمـي هـم حاصلیږي انسان تـه؛ ځکـه زمـونږ د طالبۍ پـه وخـت کـې او همداسې وړاندې او وروسته زمانو کې به چې چا معقولات نـه وو ویلي او یا به یې کم ویلي وو نو هغه به داسې ضـعیف، بې جُرئته او وارخطا معلومېده او چې چا به پوره ویلي وو هغـه بـه قوي، ډاډمن، باجُرئته او په هر میدان کې د حاضرېدو قابل ؤ،

هو! شرعي علومو ته باید ډیره زیاته توجـه وشي او ډیـر وخت په کې صرف کړل شي.

نور بیا...

داستقامت، دیانت او تواضع لوړ منار شهید

# مولوي عبدالهادي پشیوال ژوند ته لنډه کتنه

لیکوال: م عبدالنور "رسولی"

مولوي عبدالهادي پشیوال د ملک عبدالحکیم زوی د لغمان ولایت د علیشنګ ولسوالۍ د ګونپال درې راجع کوټ کلی اوسیدونکی په قوم پشه یي وو.

## هجرت

کال ۱۳٦٤ هـ ش کله چې شوروي په افغانستان باندې یرغل وکړ شهید مولوي صاحب (رحمه الله) د ګاونډي هیواد پاکستان ضلع صوابی ته مهاجر شو، ابتدایي درسونه یې د هجرت په دیار د صوابی شاه منصور بابا جي مدرسه کې شروع کړل بیا څه سبقونه یې خپل ورور محمد هاشم سره دارالعلوم اسلامیه تنګي کې د شیخ القرآن والحدیث مولانا محمودشاه تیلوي (رحمه الله) په سرپرستۍ کې وویل بیا څه درسونه یې د زرګري په مدرسه کې هم وویل وروسته په مختلفو مدارسو کې درسونه لوستي دي.

فراغت یې په ډاګۍ کې له شیخ القران والحدیث مولانا حمدالله جان ډاګۍ صاحب نه شوی دی او دوره تفسیرالقران یې د شاه منصور باباجي نه کړی وو.

کله چې درسونه به یې د کال په پای کې رخصت کېدل بیا به د جهاد لپاره د افغانستان د خوست ولایت ته تللو او هلته به یې د مرحوم مولوي جلال الدین حقاني (رحمةالله) تر مشرۍ لاندې جهاد کاوه.

## مسؤولیتونه:

د دجهاد په ابتدا کې له الحاج مولوي جلال الدین حقانی صاحب سره مجاهد وو بیا د تېر امارت په دور کې شهید مولوي صاحب په خوست کې د چاراسیاب د خط مسؤول شو کله چې نور ولایتونه فتحه شول بیا په لغمان ولایت کې د غونډ مسؤول شو د دولت شاه ولسوالۍ د خط مسؤل هم وو، وروسته په شمال کې د پروان ولایت د چاریکار د خط مسؤل شو.

د افغانستان اکثرو ولایتونو ته یې جهادي سفرونه شوي دي لکه: بامیان، کندز، ننګرهار، پروان، کنړ، چې په پوره میړانې سره یې خپله وظیفه ترسره کړې او د الله په نصرت سره فتوحات یې حاصل کړي دي.

بیا په کال (۲۰۰۱م) کې چې کله امریکایانو په افغانستان کې د اسلامي امارت مشروع حکومت باندې حمله وکړه د نورو مجاهدینو په څېر شهید مولوي صاحب هم خپل ولایت لغمان ته راغی جهاد ته یې ملا وتړله دا چې اسلامي امارت سقوط وکړ او لغمان ولایت هم د رمضان المبارک میاشت کې سقوط شو نو مولوي صاحب یو ځل بیا دیار هجرت ته هجرت وکړ او له موقع نه په استفاده یې خپل پاتې درسونه هم مکمل کړل.



په کال (۲۰۰۲/۲۰۰۳م) کې کله چې بیا ځل مجاهدینو تحرکات شروع کړ مولوي پشه يي وال جهادي بهیر بیت له سره پیل کړ.

په کال (۲۰۰۶م) کې شهید رحمه الله د لغمان ولایت لپاره نظامي مسؤل مقرر کړی شو د جهاد عملي ډګر ته لاړ او په همدې خدمت کې يې څو کالو پورې خدمت وکړ بیا د مشر تابه په حکم يې د لغمان او کابل ولایتونو معاون په صفت خدمت وکړ.

له هغې وروسته بیا د مرکزي نظامي کمېسیون او شمالي حلقه کې عضوه پاتې شوی دی، ورپسې د کاپیسا ولاینرت والي وټاکل شو او بیا د مشرتابه په حکم د کنړ په ولایت کې د داعش ضد عملیاتو مشري يې په غاړه درلوده چې د الله تعالی په نصرت سره دده د مشر توب په وخت کې کونړ له داعشیانو څخه فتحه او تصفیه شوه چې ورپسې یو وار بیا د لغمان ولایت والي وټاکل شو چې د شهادت تر وخته په همدې مسؤلیت کې پاتې وو.

**جهادي ژوند:**

د شهید مولوي صاحب عبدالهادي پشیوال (رحمه الله) جهادي کارنامې خو ډېرې دي يو څو به يې دلته ذکر کړم زه په کاپیسا ولایت کې وم شهید مولوي صاحب د هیئتی په شکل کې کاپیسا ولایت ته راغی اول سفر يې نجراب ولسوالی ته وشو څه موده پس د کاپیسا ولایت والي په چاپه کې شهید شو بیا د کاپیسا ولایت لپار د والي په هیڅ شهید مولوي صاحب پشیوال (رحمه الله) معرفي شو د امریکایانو لخوا سخت چاپې او عملیاتونه تر سره کیدل شهید (رحمه الله) چې کاپیسا ته راغی ټول مجاهدین يې راټول کړل د نیت اصلاح، اخلاص او اخوت په اړه يې خبرې وکړې له مجاهدینو سره يو ځای سنګرو کې ګرځیده د الله ﷻ په نصرت سره دښمن له سختې ناکامۍ او نامرادی سره مخ شو، د کابل اداري د امریکایانو په ملتیا د محترم مولوي صاحب په نوم يو کور بمبار کړ چې په هغه کې (۱۱) تنه کسان شهیدان شول.

د الله تعالی په نصرت په کاپیسا کې د دښمن مهم خطونه د مجاهدینو له لوري مات شول شهید مولوي صاحب او مجاهدینو د قربانیو په برکت سره فتوحات راغلل د دښمن مهم قومندانان ووژل شول ډېرې ساحې مجاهدینو ته په لاس راغلل، بیا د مشرتابه لخوا امر ورته وشو چې تاسو يو تشکیل برابر کړۍ او کونړ ولایت ته د داعشي خوارجو مقابلې لپاره لاړ شئ په دې کې شهید مولوي صاحب کنړ ولایت ته سفر پیل کړ په لاره کې کوچنۍ اختر هم راغی، کله چې لغمان ته ورسیده د لغمان ولایت ټول مشران ملګري او مسؤلین يې را جمع کړل او کونړ ته د تشکیل خبره يې ورته وکړه د دښمن مقابلې او کونړ ته د لغمان تشکیل يې هم برابر کړ ټولو مسؤلین او مجاهدین تیار شول بیا په لغمان کې د کونړ ولایت لپاره درې محاذه جوړ شول.

یو د مزار درې محاذ

دوهم د چپه درې محاذ

دریم د کرنګل درې محاذ

شهید مولوي صاحب پشیوال د مزار درې د محاذ مسؤل وو سفر شروع شو مونږ چې کله کنړ ته نږدې شو د داعیشانو او خوارجو لخوا کمین نیول شوی وو (۱) تن مجاهد ملګری شهید (۷) کسان زخمیان شول د دښمن هم ډیر کسان مړه او ژوبل شول کمین د الله تعالی په نصرت سره مات شو، موسم ډیر یخ وو ټوله ځمکه باندې واوره پرته وه ځینو ملګرو د یخ په سبب شکایت کاوه ویل يې چې مونږ واپس کېږو شهید مولوي صاحب ورته وویل موږ هغه وخت پورې نه واپس کیږو تر څو چې داعش خوارج مو ختم کړي نه وي دښمن باندې عملیات شول د الله ﷻ په نصرت باندې هغه ګن ځایونه الله تعالی فتح کړل.

لـه فتحـې وروسـته پـه کنـړ ولایـت کـې د مجاهدینو مـورال نـور هـم قـوي شـو د عملیـاتو پـه شروع کـې ډیـر لـږ تعـداد مجاهـدینو ملګـرو سره د سـهیل تنګـي دره د اللـه تعـالی پـه نصـرت فتحـه شوه عجیبه واقعه دا وه هلته یـوه بـوډۍ ښـځه راغلـه اوبه ورسره وې ویل یې چې د امـارت مجاهـدین کـه خدای راوستل زه به په ځپـل لاس اوبـه ورکـوم هلتـه اوبه هم ډیر په مشـکله پیـدا کیـدل ولسي- خلـک لـه مجاهدینو سر پوره هم کاره وو الحمدلله د افغانستان ملت ټول مجاهد پرور خلک دي.

کله چې شهید مولوي صاحب له دغو عملیـاتو وروسته کور ته راغی یو ځل بیا د مشرانو پـه امـر پـه کونړ ولایت کې د داعش ضد عملیاتو عمومی مشر- وټاکل شو او دی واپس کونړ ته لاړ او دده پـه مشرۍ الحمدلله بیا ټول کونړ فتحه شو.

**خصوصیات:**

شهید مولوي صاحب کـې دا ځـانګړې خـوی وو چې د مجاهدینو به یـې ډیـر خـدمت کـاوه او پـه ولسي خلکو باندې ډیر مهربـان وو. د ولسي خلکـو بـه یـې ډیـر خیـال سـاته دا بـه یـې ویـل چـې دا د مجاهدینو سرمایه ده.

شهید مولوي صاحب یو نـه سـتړی کیـدونکی مجاهد د دښـمن دسـترګو ازغـی وو. بلآخـره مابښـام مهال خپل کـور طرفتـه روان وو چـې کورتـه نـژدې د بزدله دښمن لخوا

۲۰۲۱/ ۲ / ۲۷ " نیتـه بانـدې پـه شـهادت ورسید (تقبله الله)

الله جل جلاله دي شهادت ورته قبول کـړي او په جنت کې د بـدر او د احـد شـهداء سره یـو ځـای کړي.

نحسبهم کذالک والله حسیبهم

# د ننګرهار نوي امنیه قومندان څرګندونې پارونکي غیرمسئولانه دي!

## او د ننګرهار له والي امرخیل صاحب نه یوه د ننګرهاري ولس غوښتنه!

د امنیې د نوي قوماندان لومړنۍ څرګندونې چې ګویا وسـله وال مـه نیسي- بلکې ویې وژنې غیر مسئولانه، غیراخلاقي، او غیـر انسـاني بلکـې خطرنـاکې او پاروونکي دي.

داسي معلومیږي چې د ننګرهار د امنیې نوي قوماندان نه اسلامي شریعـت لوستلی او نه یې هم د جینوا د کنونسیون کومه ماده لوستې ده چـې دواړه یـې د جنګي اسیرانو وژنه تحریموي او هغه د شریعت اوهم نړۍ وال قانون پـر خـلاف عمل بولي.

د ننګرهـار د نـوي امنیـې قومانـدان ناسـمې، غیـر اسـلامي او غیرقـانوني څرګندونې په داسي یوه حال کې نشریږي چـې مـونږ افغانـان د صـلحې پـه یـوه نازک پړاو کې قرار لرو او هره هغه کړنه یا خبره چې صلحه ننګـوي او جنګ تـه پکې لمن وهل کیږي هغه د اسلام، افغانیت، انسانیت پر خلاف بلل کیږي.

فلهذا افغان مسئولین، چارواکي او د جنګ دواړه طرفونه دې کوښښ وکړي چې د جنګې، حربي ادبیاتو پرځای افغاني، صلحه ایز ادبیات وکاروي او ملت له رواني تشویش او اندیښنو خلاص کړي، ځکه داملت دی چې د جنګ لوړ قیمت پرې کوي.

د جلال اباد نوی امنیې قوماندان له تازه څرګندونو داسي معلومیږي چې تـر اوسه یې نه د جنګ خوند څکلی او نه یې هم شاید په کومه مخـامخ جګـړه کـې برخه اخستی وي نـو ځکـه (د مـړي خیټـې فـارسي وایـې) چـې دده دا نامسئوله څرګندونې به د سلګونو، بلکې زرګونو بیچاره عسکرو د مـرګ او میرسـبب شي کوم چې ترشا کورنۍ، بچیان او خواخوږي لري.

فلهذا! د ننګرهار له والي امرخیل صـاحب نـه هیلـه ده مخکـې لـه دې یـاد قوماندان دنده اشغال او شروع کړي باید بیرته ولیـږل شي ځکـه دا ډول قومانـدان چې هیڅ ډول سیاسي، واقعي تجربه او بصیرت نلـري او د ننګرهـار لـه جغرافیـا سره هم بلد ندی د ننګرهار د خلکو مشکلات بـه خامخـا زیـاتوي دوهـم، دریـم لاس ته به د هر ډول کړنو لاره هواروي، د انتقام اور به بلوي او بالاخره هغه نسبي امنیت چې ننګرهار ته ستاسو په ولایت کې راغلی، تس نس کوي، هدفي وژنـو، چاودنو، ترورونو، اختطاف ته یوځل بیا لاره پرانیزي.





# تخریب بیش از ۱۳۰۰ قطعه
## از تجهیزات نظامیان امریکا در افغانستان

نویسنده: لورن جیلا/ ت : اسد پژمان

در حالی‌که آخرین سربازان آمریکایی و ناتو پس از دو دهه جنگ از افغانستان خارج می‌شوند، هزاران تجهیزات نظامی را بجا گذاشته تا در میدان‌های ضایعات به شکل آهن پاره و ضایعاتی تخریب و نابود شوند. نظامیان آمریکایی پایگاه هوایی بگرام را در هم می‌شکنند و هر آنچه را که به آمریکا منتقل نشود از بین می‌برند. براساس بیانیه‌ی که از سوی ارتش آمریکا صادر شده‌است، تاکنون در حدود ۱، ۳۰۰ قطعات تجهیزات نظامی تخریب شده‌است. یک مقام به اسوشیتدپرس گفت که قبل از آخرین مهلت عزیمت در ۱۱ سپتامبر، تعداد بیشتری از این تجهیزات تخریب خواهد شد.

این روند به عنوان یک تدبیر امنیتی انجام می‌شود تا اطمینان حاصل شود که تجهیزات نظامی به دست جنگجویان و شبه‌نظامیان نمی‌افتد. با این حال، فروشندگان ضایعات در سراسر افغانستان این را اجناس ضایعات می‌دانند. بابامیر به اسوشیتد پرس گفت: «آنچه که آن‌ها انجام می‌دهند خیانت به افغانستان و افغان‌ها است. آن‌ها باید اینجا را ترک کنند». او گفت: «آن‌ها ما را نیز مانند این وسایط و وسایل نقلیه ویران کرده‌اند». افغان‌ها احساس می‌کنند از میراثی بجا مانده‌ی که حداقل تا حدودی آمریکایی‌ها را مقصر می‌دانند، دولت افغانستان یک دولت کاملاً فاسد مورد حمایت ایالات متحده و بی‌ثباتی رو به رشد که می تواند به یک مرحله جدیدی از جنگ‌های خانه‌مانسوز داخلی تبدیل شود.

در پایگاه بگرام، در شمال غرب پایتخت کابل، و پایگاه‌های دیگری نیروهای آمریکایی در حال جمع آوری تجهیزات مورد نیاز خود برای بازگشت به آمریکا هستند.

ده‌ها هزار کانتینر فلزی به طول حدود ۲۰ فوت با هواپیماهای C- ۱۷ و یا هم زمینی از طریق پاکستان و آسیای میانه حمل می‌شوند. در هفته گذشته، ۶۰ فروند هواپیمای C- ۱۷ همراه با تجهیزات، از افغانستان خارج شده‌اند. مسئولان در مورد آنچه که باقی می‌ماند و آنچه که می‌رود سری عمل می‌کنند. به گفتهٔ مقامات آمریکایی و غربی که نخواستند نام‌شان فاش شود تا آزادانه در مورد سربازان در حال عزیمت صحبت کنند، بیشتر آنچه که به خانه حمل می‌شود تجهیزات حساسی نظامی است.

یکی از پایگاه‌هایی که اخیراً تحویل داده شده است، پایگاه جدید انتونیک در ولایت هلمند است که گفته می‌شود طالبان حدود ۸۰ درصد از مناطق روستایی آن را در کنترل خود دارند. به دلیل شرایط نامناسب وعدم اعتماد بالای رژیم کابل سرنوشت این توده‌های ضایعاتِ تجهیزات و وسایل نقلیه این است که نه تعمیر شوند و نه به نیروهای امنیتی افغانستان تحویل داده شوند.

این یک عمل جدید نیست. همین کار در سال ۲۰۱۴ نیز انجام شد، زمانی‌که هزاران نیروی نظامی آمریکا و

ناتو امنیت افغانستان را به نیروهای افغانستان سپردند و خارج شدند. سخنگوی ماموریت لجستیکی و دفاعی ارتش در ویرجینیا در آن زمان گفت: «بیش از ۳۸۷ میلیون پوند (۱۷۶ میلیون کیلوگرم) ضایعات از تجهیزات و وسایل نقلیه تخریب شده به قیمت ۴۶. ۵ میلیون دالر به افغان‌ها فروخته شد».

سادات، یکی دیگر از فروشندگان وسایل دسته‌دوم در بگرام که تنها با همین نام شناخته می‌شود، می‌گوید که سایر گدام‌های ضایعات در سراسر کشور مملو از تجهیزات تخریب‌شده آمریکایی است. او گفت: «آن‌ها چیزی برای ما باقی نگذاشتند و آن‌ها به ما واداره کابل اعتماد ندارند. آن‌ها کشور ما را ویران کردند. تنها چیزی که آن‌ها به ما می‌دهند، ضایعات و ویرانی است»

برای رسیدن به این هدف، او یک داستانی را بازگو کرد و گفت: چند وقت پیش، نیروهای آمریکایی دو عراده تانک هاموی را کشف کردند که به دست طالبان افتاده بود. اما مالکان ضایعات که افغان بودند و ده‌ها نفر دیگر که مواد زائد داخل حیاط‌ها را غربال می‌کردند، تعجب می‌کردند که تردمیل پاره پاره شده چه خطراتی را می‌تواند ایجاد کند، شیلنگ‌های طویل و دراز آتش‌نشانی که قطعه قطعه شده بودند، یا کیسه‌هایی که قبلاً برای ایجاد دیوارهای بزرگ و یا برای موانعی شن و ماسه با پارچه مشبک قدرتمند استفاده می‌شدند، اکنون همه آن‌ها قطعه قطعه شده جزء ضایعات و بی‌فایده است.

ده‌ها چادر و خیمه بریده‌شده و تکه‌تکه‌شده روی هم چیده شده‌بود. در همان نزدیکی بوشکه‌های سوخت و تیل جنراتورهای منهدم شده، زنجیرهای تانک و فلزات ضایعاتی بودند که به موترخودروی حامل‌بار شباهت داشتند. حاجی‌گل با ریش خاکستری، یکی دیگر از فروشندگان ضایعات گفت: «آن‌ها کشور ما را ویران کردند و اکنون زباله‌های خود را به ما می‌فروشند». «ما باید با این روش و رفتار چه کار کنیم؟

منبع: مجله نیوزویک

## میلی به بایدن:

# ۱۸ هزار ترجمان را از افغانستان خارج کن

ژنرال امریکایی از کاخ سفید خواسته تا تمامی ۱۸ هزار ترجمان افغانستانی را که به نیروهای امریکایی کمک می‌کردند از بیم به قتل رسیدن توسط طالبان، از این کشور خارج کند.

به نوشته روزنامه دیلی میل، ژنرال مارک میلی، رییس ستاد مشترک ارتش امریکا می‌گوید، برنامه‌ای برای خارج کردن سریع تمامی ۱۸ هزار ترجمان افغان در نظر گرفته شده اما کاخ سفید از این پیشنهاد حمایت نکرده است.

وی در جریان سخنرانی خود در آکادمی نیروی هوایی امریکا گفت: برنامه‌هایی برای خروج سریع ترجمان و تمامی آنهایی که با نیروهای امریکایی در افغانستان کار می‌کردند، وجود دارد. ما نسبت به کمک به این افراد یک تعهد اخلاقی داریم.

نیروهای امریکایی قرار است تا سال روان میلادی از افغانستان خارج شوند اما پرسنل نظامی هشدار داده‌اند که طالبان با دانستن این مساله کنترل بخش‌هایی از افغانستان را دوباره به دست گرفته و شبه نظامیان این گروه به ویژه ترجمانی را که به ارتش آمریکا کمک کردند هدف حملات خود قرار می‌دهند

کاخ سفید بلافاصله در مقابل درخواست ژنرال میلی در آمد و سخنگوی شورای امنیت امریکا گفت که برنامه‌ای برای خارج کردن این ترجمان ها در حال حاضر وجود ندارد.





جلال هوتک

# له امریکا سره ډغرې وهل لیونتوب ده؟!

کلونه وړاندې چې د وطن پـه ځمکـه او فضـا د اشـغالګرو بشپړ راج چلیده، د ښوونځي استاد مـو پـه ټـولګي کـې د امریکـا سـیاسي او نظـامي عظمـت بیانــاوه، د هغـوی د پیاوړتیـا او د مسلمانانو د ضعف کیسې یې کـولې او لـه امریکـا او نـاټو سره ډ غره وهل یې د زمري حلق ته لاس تېرول بلل.

ده په افغانستان کې د امریکا په دایمي نظامي حضور دومـره باور درلود، تا به ویل د کوم صریح نص او یا هم صحیح حـدیث په اساس درته غږېږي.

پر ده که به بله هره لار ورکه شـوه، د ثبـوت پـه ډول بـه یـې شوراب او باګرام اډې چې کلونـه، کلونـه امریکـا پکـې خـواري کړې او د دایمي بیسونو په څېر یې رغولې درته وړانـدې کـړې او همدا به یې په سیمه کې د امریکا د همیشني حضور ننبه بلله.

یوه ورځ مې دده خبرې غوڅې کړې، ومې ویل، استاده! که توپکونه له اوږو کوز نکړو، که نیتونه له چټلیو پاک کړو او کـه د الله په نصرت بشپړ باور لرو، همدا امریکا او ورسره نیمه نړۍ بـه داسې ماته خوري، څه ډول چې روسي ښکېلاک دلته پـه ګونـډو شو!

دا شوراب او باګرام د شګو بندونه دي چې د ایماني جـذبې د سیندونو په وړانـدې د اوبـو د مخنیـوي پـه بـې ځایـه تمـه تـړل کېږي. دلته روسانو او انګریزانو او تـر هغـه وړانـدې چنګیـز او د مقدوني سکندر پوځیانو هم دا بندونه تړلي وو، خـو نـه یـوازې د ایماني جذبې او افغاني جوش سیند یې مهار نکړ بلکې څپـو یـې دوی هم په مخه کړل.

ده ته مې ویل، دا خبره زه نه کوم، دا قران راته کوي، دا لوی خدای جل جلاله راته فرمایي چې ډېر کلـه یـوه وړه ډلـه پـر یـوه ستره او نه پرتله کېدونکې ډله باندې غالبوي.

استاد به ښایي هغه وخت احساساتي او سطحي بللی وم او یا بې ادبه، خو نن به شاید زما هماغه استاد د رسنیو پر مخ لیدلی وي، چې څه ډول له شوراب او باګرامـه د امریکـایي ښـکیلاک د ناولو قدمونو خاپونه په ورکېدو دي.

استاد او د هغه همفکرو ته وایو! موږ به یو او یـا بـه نـه یـو، خو دا د خدای په عظمت لوړه درته کوو، چـې دا خـاوره د پردیـو او د اشغال د مزدورانو راج نه مني، دا زرخیزه خـاوره د میلیونونـو مسلمانانو په وینو خړوبه ده او کله هم د سرو کفارو او د هغـوی د غلامانو حاکمیت ورته د منلو نه دی.

دا منو چې دلته به څړ ورځې موږ د ځمکې لـه مـخ محـوه شو خو د کرلو تخمونو پـه څېـر بیـا را زرغـونېږو او د مزاحمـت ځانګې مو تر پخوا ډېرې پراخېږي.

نو لطفا زور مه وهئ او په پردیو متېو مه نازیږئ

ليکنه: انس افغاني

# د شهيد ملانېک محمد "رهبر" ژوند ته کتنه

زموږ په افغاني ټولنه کې ډېرې داسې کورنۍ شته، چې د دين او وطن په دفاع کې يې خورا حيرانوونکې قربانۍ ورکړې دي، يو له دغو کورنيو څخه د افغانستان په ختيځ کې د شهيد ملانېک محمد"رهبر" کورنۍ ده چې په تېر او اوسني جهاد کې د قربانيو وياړمنه تاريخي سابقه لري، نيږدې څو لسيزو کې يې ټولنې ته د سر داسې سرې ورانډې کړې دي، چې په خپلو وينو يې ملت ته عملاً د قربانۍ او ايثار نمونه وړاندې کړې ده، د روسي او غربي ښکيلا کګرو پر وړاندې يې مخامخ مقابله او مبارزه کړې ده، او په دغه لاره کې يې په مسلسل ډول د کورنۍ شپږ غړي په شهادت رسيدلي دي.

### نه بدليدونکې کورنۍ:

که څه هم دغه جهادي کورنۍ د څلوېښت کلن جهاد په جريان کې د هر ډول تاړاکونو، سختيو او قربانيو سره مخ سوه، خو بيا يې هم خپله تګلاره بدله نکړه، په منصب، قدرت، دولت او مادياتو خرڅ نه شول او نه يې د سنګر ملګرو، کونډو، يتيمانو او شهيدانو سره غدر وکړ.

د سپيڅلو شهيدانو د پاک ارمان د تحقق لپاره يې په سختو پيچومو يون وکړ او د اسلامي نظام د قيام لپاره د ژوند له هر ډول خوښيو او خوږو تېر شول.

### څلور شهيدان ورونه او يو شهيد وراره:

د شهيد ملانېک محمد رهبر تقبله الله له شهادت څخه وړاندې يې څلورو ورونو او يوه وراره د شهادت جامونه نوش کړل.

تر ټولو وړاندې يې د ملا احمد حنيف په نوم يو ورور د خوږيانو ولسوالۍ په مربوطاتو کې د صليبيانو او دهغوي د غلامانو په چاپه کې د قوي مقاومت نه وروسته په شهادت ورسيد وروسته مولوي نورمحمد حقپال چې داسلامي امارت په دوهمه روانه دوره کې د ننګرهار والي وو، د دښمنانو په يو غلچکي بريد کې په شهادت ورسيد، وروسته يې بل ورور د ملک عمبرګل (عمر) په نوم د صليبيانو د درونډ بمبار په پايله کې په شهادت ورسيد.

بل ورور يې د فضل سبحان په نوم چې په کاکا مشهور وو، د داعشيانو له خوا په يوه بريد کې په شهادت ورسيد، همدارنګه د طالب الحق حقپال په نوم يو وراره يې د وحشي- داعشيانو سره په مخامخ جګړه کې لومړی شهيد او بيا يې په ډېره بې رحمۍ سره، سر ورنه پرې کړ.

د يادو شهيدانو د شهادت نه وروسته د دوی د کونډو او يتيمانو سرپرستي شهيد ملانېک محمد رهبر"تقبله الله" په غاړه وه، خو له بده مرغه چې د دغو کونډو، لس ګونو يتيمانو سرپرست او د يوې پښتنې مورکۍ پنځم زوي هم د يوې نرۍ ارمانونو سره تر خاورو لاندې شو. د دغې مجاهدې کورنۍ وروستنی شهيد ملانېک محمد رهبر تقبله الله دی.

راځئ دلته د ننګرهار ولايت د دې مخکښ غازي او شهيد په ژوند رڼا واچوو، کارنامو او خاطرو ته يې تم شو.

**زوکړه:** شهيد ملا نېک محمد"رهبر" د ننګرهار ولايت د خوږيانو ولسوالۍ د وزيرو د سيمې د پيرخېلو کلي کې د الحاج خيرمحمد په کور کې په ۱٤۱۱هق کال کې دنيا ته سترګې وغړولې، کله چې د امريکا او د هغې د متحدينو لخوا زموږ په هېواد تېری وشو، د اشغال پر وړاندې مبارزه کې يې پراخه ونډه

واخیستله، بالاخره په همدې سپیڅلې لار کې یې خپله پاکه وینه نذرانه کړه او د شهادت په دائمي خوب ویده شو.

**د جهاد پیل یې:**

نوموړي په داسې وخت کې د ځوانۍ په درشل پل کېښود چې غربي اشغالگرو د هیواد په سپیڅلي حریم تجاوز کړی و او د هیواد په لوېشت لوېشت کې د وحشت او بربریت اورونه بل وه، په همدغه وخت کې د ده ورور شهید ملک عمبرگل"تقبله الله" هم په شهادت ورسید، د نوموړي د شهادت نه وروسته یې د جهاد بیرغ په خپل لاس کې واخست، عمر یې کم، خو یو درونډ مسئولیت ته یې اوږه ورکړه او د هغه ځای ناستې وټاکل شو.

**دندې او مسئولیتونه یې:**

شهید رهبر رحمه الله په کم عمرۍ کې د لوړ استعداد څښتن او یو پیاوړی تجربه کار مجاهد و، په نظامي چارو پوه او د یو مسلکي قومندان په څېر یې خپل جهادي فعالیتونه پر مخ وړل.

د نوموړي د وړتیا پر اساس د اسلامي امارت له خوا په جلا جلا وختونو کې د لعلپوري بیا د شیرزادو او بیا د بټي کوټ ولسوالیو نظامي مسئول وټاکل شو.

وروسته بیا د کابل د نظامي قطعې مسئول وټاکل شو.

او په وروستیو کې یې د ننگرهار ولایت د نظامي قطعې معاون او مرستیال په حیث دنده اجراء کوله.

**د صلیبي یرغل پر وړاندې:**

شهیدملانېک محمد رهبر تقبله الله له ماشومتوبه له جهاد سره بې کچې مینه لرله، هر وخت به یې د خپلو مشرانو ورونو سره په جهادي امورو کې همکاري کوله، د بلوغ نه وروسته چې کله د ملگرو درونډ مسئولیت ورته وسپارل شو، دغه امانت یې هم په ښه طریقه یې پر مخ وړلو.

دصلیبي یرغلگرو او د هغوی د غلامانو او مزدورانو پر وړاندې یې قوي، منسجمه او دوامداره مبارزه وکړه، سیمییز خلک یې د صلیبي یرغلگرو له شومو اهدافو او پلانونو څخه خبر کړل او د هغوی له منځ نه یې سلگونه ځوانان د صلیبي یرغلگرو او د هغوي د غلامانو مقابلې ته تیار کړل.

د ننگرهار په مختلفو سیمو کې یې په صلیبي یرغلگرو او د هغوي په اجیرانو چریکي، تهاجمي، هدفي، بمي او استشهادي بریدونو پلانونه جوړول او په کامیاب ډول یې تطبیق کول. لنډه دا چې تر وروستۍ سلگۍ د صلیبي اشغالگرو او د هغوي له غلامانو سره په میړانه وجنگیدو او تر شا یې یو ویاړلی تاریخ پرېښود.

**د داعش فتنې پر وړاندې یې فعالیت:**

کله چې د افغانستان په ختیځ کې د داعش فتنه گر ټولي سر راپورته کړ او د ننگرهار ولایت ځینې سرحدي سیمې یې تر خپل واک او اغیز لاندې راوستې نو شهید رهبر"تقبله الله" د لومړنیو هغو مجاهدینو څخه وو چې د داعش مقابلې ته یې ملا وتړله وهلی او د دغه نابلده او وحشي ټولي پروړاندې یې عملي مبارزه او مقابله شروع کړه، د مجاهدینو قیادت یې په لاس کې واخست او د سپین غر په لمنو کې یې د داعشیانو سره خونړۍ جگړې پیل کړې.

دغه د یوې داسې جگړې پیل و چې مقابل لوري یې د جگړې هیڅ اسلامي او انساني اصول نه مراعت کول، خو د دې ټولو مشکلاتو باوجود نوموړي د دوی پر وړاندې پرېکنده جگړې وکړې، د سپین غر هره دره، ناله او ناو د دوی قدمونو لمس کړه، د ننگرهار هسک غرونه یې د خوارجو لپاره مقبره وگرزوله او تر وروستي سرحده یې داعشیان تعقیب او وزغلول.

په دغه ځو کلنه جگړه کې یې په سلگونه د څنگ ملگري دلاسه ورکړل، یو ورور (فضل سبحان کاکا) او یو وراره طالب الحق یې هم د داعشیانو له خوا په شهادت ورسیدل او خپله هم ځو ځله د مرگ د گوابښ سره مخ شو.

**د داعشیانو له خوا پرې خونړي بریدونه:**

شهید رهبر تقبله الله د داعش پر وړاندې دومره جدي و، چې د هغوی سره یې مبارزه د ژوند له لوړو هدفونو بلله، داعشیانو هم په ننگرهار کې رهبر ته د سخت ترین دښمن په سترگه کتل، تردې پورې چې داعشیانو یې پر وړاندې داسې اعلان وکړ:هیڅکله به د رهبر بیعت قبول نکړي او نه به یې معاف کړي. داعشیان پوهیدل چې زمونږ د پرمختگ پر وړاندې لوی خنډ ملانېک محمد رهبر دی.

همدا وجه وه چې داعشیانو یې د وژلو لپاره مختلف پلانونه او امکانات په کار واچول. کمینونه، ریموټ کنټرول ماینونه او په واسکټ سمبال ځان وژونکي هغه څه وه چې د رهبر د وژلو لپاره

يې استعمال کړل خو رهبر"تقبله الله" د دې ټولو بريدونو نه روغ رمټ ووت. د شيرزادو وادي حصار او د خوږيانو د وزيرو په سيمو کې يې پرې بمي انفجارونه وکړل خو د خداي په نصرت د ټولو نه روغ رمټ ووت.

## داعشي ځان وژونکی:

هرکله چې په رهبر رحمه الله د داعشيانو هدفي او بمي بريدونه ناکامه شول نو بيا يې پسې ځان وژونکی راواستوه. يوه ورځ راته شهيد رهبر رحمه الله داسې کيسه وکړه:

د وزيرو ابکو صيب جامع جوماټ ته مې د وزيرو ملکان، سپين ږيري او علماء د يوې مشورې لپاره رابللي وو، چې تعداد يې نژدې اويا تنو ته رسيده.

په مسجد کې د سپينږيرو په منځ کې ناست وم چې په دروازه يو نابلده ځوان چې په څادر کې يې ځان پوښلی و، راننوت، د خلکو پر اوږو يې ګامونه راواړول او زما پر لور ګړندي راروان و.

ما فکر وکړ چې کيداي شي کوم مسافر مجاهد وي، کوم پيغام يې راوړی وي او يا څه ضرورت به لري.

کله چې راورسيد، د غيرې راکولو سره سمدستي يې د بارودي واسکټ کيلي کش کړه، خو له نيکه مرغه پټاکی انفجار وکړ او واسکټ ونه چاودید، د ټک اوريدو سره مې يوه ډيکه ورکړه او ځان وژونکی پر ځمکه راوغورزيد.

ځانوژونکي هڅه وکړه چې په بغل کې ځاي پرځاي کړې تمانچه راواخلي او د دوهم ځل لپاره پر ما بريد وکړي خو زما ترخنګ ولاړ ملګري (ابوبکر) پرې د کلاشنکوپ ضربه وکړه او ځاي پر ځاي يې وواژه.

وروسته معلومه شوه چې داعشيانو په بارودي واسکټ سمبال يو ازبک ځان وژونکی زما د وژلو لپاره راستولی و، خو خداي تعالی يې بريد ناکامه کړ او زما ژوند يې په معجزانه ډول وژغوره.

## ځانګړتياوې:

شهيد ملانيک محمد رهبر يو شريف، سنګين، خوش اخلاق او جذاب شخصيت و. خداي تعالي د ډېرو ښو صفاتو لوروينه پرې کړې وه. د ملګرو، مجاهدينو او عامو مسلمانانو سره يې داسې سلوک او رويه کوله لکه يو مشر ورور چې د کشرانو ورونو سره کوي، همدا وجه وه چې هر څوک به د شهيد ملانيک محمد رهبر د ملاقات تږي و.

د ولسي خلکو سره يې نژدې اړيکه درلوده، د هغوی مشکلات به يې په ورين تندي اوريدل، مشکل به يې درک او سمدستي به يې د حل کولو کوشش کولو.

د دې ترڅنګ هغه رحمه الله يو سخي، خوږ ژبې او د نرم زړه څښتن و، ستره حوصله او پراخ زغم يې درلود، هر وخت به د مظلوم تر څنګ ولاړ و.

شهيد رهبر به د ملګرو په منځ کې د يو عاجز، فقير او خادم انسان په حيث ژوند کاوو او په سنګر کې به يو زړور، شجاع او بهادر قومندان و. د شهيد رهبر"تقبله الله" تر ټولو ستره ځانګړتيا دا وه چې په ولس کې يې ژورې ريښې درلودلې، د نيکو اخلاقو په وجه يې د هر چا په زړه کې ځانګړی ځاي درلود او په هر چا زيات ګران و. د خپل ځان په اړه يې هيڅکله داسې فکر نه کاوو، چې زه بايد هر وخت تر نورو لوړ و اوسم بلکې د هر ملګري او مجاهد مخکې به يې ښه چلند او تواضع وياړ باله.

## شهادت يې:

د يوې داسې زوريدلې سپين سرې مورکۍ پنځم زوي (د زړه ټوټه) د سنګر په لور د تللو اراده لري، چې له دې وړاندې يې د څلورو زامنو او يو لمسي غم په ملا ماته او په زړه داغلې وه.

زوی (رهبر) يې نه غواړي چې د ده له تللو څخه يې غمزپلې مورکۍ خبره شي، مور جانه او خپل ماشومان په موټر کې کښينوي او د خپلې خور کره يې بيايي ترڅو د ده له تللو څخه ناخبره پاتې شي.

له مور څخه د خپلو ملګرو پر لور راستنيږي او د ملګرو سره يو ځاي د سنګر پر لور حرکت کوي، خو ژوند ورسره ياري نه کوي، يو څو قدمه وړاندې په لاره کې يې د ژوند شيبې پاي مومي، د ژوند تنابونه يې شليږي او د ۱۴۴۲ هق کال د رمضان المبارک په ۷ مه د دوشنبې په ورځ ماسپښين شاوخوا درې (۳) بجې د يو غلچکي بريد په پايله کې د ۳۱ کلونو په عمر خپل روح خداي تعالی ته په داسې حال کې سپاري چې وږې، تږې او روژه يې په خوله وه. انالله واناالیه راجعون.

هوکې د بُزدله دښمن په مردکي د يوې پښتنې مورکۍ د زړه پنځمه ټوټه راوپرزيده، د لسګونو يتيمانو او کونډو يوازينۍ هيله او اسره د خاورو سره خاورې شوه.

د شجاعت، ميړانې، وياړونو، غيرتونو او ننګونو دنګ غر راونړيد. د مرګي تېره اره د لوړ چنار په دنګو دنګو خانښونو کې وچلېده او تاندې تاندې څانګې يې په سپېرو خاورو کې راپرېوتې.

تر شا يې ډلې ډلې ملګري يتيمان پرېښودل، چې زوړنه يې ډک، سترګې يې سرې او د هجران او فراق ساندې وهي.

دژوند هره شيبه، هره صحنه يې د درد، آه، فرياد اوسلګکيو ژوندې تمثيل وړاندې کوي او په دې ستره دنياګۍ کې يو ځاي هم ځاي نه ورکوي. د خپل مشر او امير جدايي او بيلتون په سره سينه لمانځي.

هغه نه وې چې يو کور درباندې ړنګ شي
ډېرې خـــونې دې په تلـو شولې ويجاړې.

**جنازه يې:**

د شهيد رهبر رحمه الله جنازه په ۱۴۴۲هـق کال د رمضان المبارک په ۸ مه د سې شنبې په سهار خپل پلرني ټاټوبي د خوږيانو ولسوالۍ د وزيرو سيمې ته انتقال شوه، د نوموړي جنازه د يو پراخ ولسي استقبال سره مخ شوه، که څه هم دغه سيمه د کابل اداري تر واک لاندې ده، خو بيا يې هم د جنازې مراسمو ته په دومره تعداد خلک راټول شوي وو، چې په دغه سيمه کې يې ساري نه دی تېر شوی، د ډېر ازدحام له امله ډېرو ونشوه کړاي چې د شهيد مخ مبارک و ويني او ځيني بيا ونو ته پورته شول تر څو د شهيد په ليدلو ځان مشرف کړي.

د کابل ادارې تر واک لاندې سيمه کې د يو طالب قومندان جنازې ته په دومره ستر تعداد کې د خلکو راټلل د لاندې خبرو څرګندوي کوي:

- معلوميږي چې شهيد رهبر رحمه الله د ولس سره ژوره اړيکه درلوده، خلکو ورسره ځانګړی مينه لرله چې په اساس يې ټول ولسونه د وروستني ديدن تـه تـرې تـرې رامات ول او دهغـه د وروستني حق (جنازې) اداء کولو لپاره په ستر تعداد راټول شول.

ـ دا هم څرګنديږي چې ولس د چاسره مينه لري؟ اګر که د کابل رژيم واک لاندې سيمه کې اوسيږي خو په حقيقت کې د اسلامي امارت تر څنګ اوږه پر اوږه ولاړ دي او د امارت د افرادو سره ژوره خواخوږي لري، همدا وجه ده چې د کابل ادارې د وژل شوو نه پوزې پټوي او د اسلامي امارت د شهيد د مخ ليدلو په ازدحام کې تر خپو لاندې کيږي.

ـ دا هم لرې نه ده چې د شهيد رهبر جنازه په دومره ستر اسقبال بدرګه کيدل د هغه ځانګړې کرامت وي، کوم چې د ده او د سپيڅلي صف (امارت اسلامي) د حقانيت څرګندوي يې وکړه.

بالاخره شهيد ملانيک محمد "رهبر" تقبله الله د ۱۴۴۲هـق کال د رمضان المبارک په ۸ مه سهار مهال په خپل پلرني ټاټوبي د خوږيانو ولسوالۍ د وزيرو په سيمه کې خاورو ته وسپارل شو. رحمة الله عليه رحمة واسعا.

له کومه وخته چې له تا نه دا نړۍ پاتې ده
زما په ستوني کې همغسې سلګۍ پاتې ده
د ژوند د ورانو نړيدلو ديوالـــونو لاندې
د جهاد مينه مې همغسې ژوندي پاتې ده.

پاي...

# د استقلال توغ

منصور درمان

د استـقلال تـوغ يـې تـومبلی د کابـل پـهٔ اور بـل
غازي جانان مې داسې ښکاري لکه ګـل پـهٔ اور بـل

د استـعمار د زېښنـاک کـرو يـې غـرور مـات کـړی
هلئ! ګلان دخو ښـی پـاش کـړئ د اتـل پـهٔ اور بـل

ستـا د غـزا د شـپـېلۍ شـور ؤ، د تکبيـر نغمـې وې
د سـپينو فتحـو انـوارات دې اوربـدل پـهٔ اور بـل

لکه سپين لمر چې د رڼا لهٔ غـاړې غـړه تـاو کـړي
دا سې ښکارېږي ستا د سپينې پګړۍ ول پهٔ اور بل

تـهٔ د غـزا څنـې را څنـډ وهـه زمـا پلـو کـې
زهٔ بـه دې کېږدمـه ګلونـه د سنځل پـهٔ اور بـل

تـهٔ چـې فـاتح لـهٔ سنګر راغلـې زمـا ښـهٔ يـادېږي
چـا دې تسـپې، چـا د سـمالونه تېـرول پـهٔ اور بـل

لـهٔ نـړۍ خـور تـا ړاک دې وکتلـه سـپينه سـوبه
منصـور درمـان دې څکـه ليکمـه غـزل پـهٔ اور بـل

# د شهید امیرالمؤمنین رحمه الله

# سترې لاسته راوړنې

عبدالولی خلیل

شهید امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور رحمه الله تعالی یو له هغه اشخاصو څخه و چې الله تعالی پرې د قائدانه صفاتو، مبتکر شخصیت، سیاسي بصیرت، زړورتیا او شجاعت لورینه کړې وه، د ژوند ستره برخه یې د کفر شر او فساد په وړاندې په مبارزه کې تېر کړ، هغه هم په داسې توګه چې تل به د قیادت او مسؤلیت چارې ورله غاړې وې، ډېل مسؤلیت به یې په خورا جدي توګه ترسره کاوه، د کارونو د ښه انسجام او پرمختګ ځانګړې ملکه یې لرله، په خپل ژوند کې یې ډېرې لاسته راوړنې او کارنامې درلودې، که یې ژوند ته ژوره کتنه وسي نو د ژوند هره شیبه یې یوه ستره کارنامه وي چې په یوه لنډه لیکنه کې راغونډول یې له وس وتې خبره ده خو د مشت نمونه خروار په توګه یې مهمې لاسته راوړنې راوړو.

شهید امیرالمؤمنین رحمه الله تعالی که د شوروي ښکیلاک، شر او فساد په وړاندې مبارزه کړې ده هم یې تاریخ د مېړانې او شجاعت کیسې کوي، او که یې د اسلامي امارت په دوره کې کوم مسؤلیتونه ترسره کړي دي هم په ښو یادیږي، خو تر ټولو کارنامه سازه دوره یې هغه ده چې د امریکا په وړاندې جهاد کې یې د نظامي مسؤلیت، د اسلامي امارت د نیابت او په وروستیو کې د زعامت په توګه تېره کړه.

د روان جهاد په اوائلو کې شهید امیر المؤمنین رحمه الله تعالی ته د نورو مسؤلیتونو سره سره د کندهار ولایت مسؤلیت هم وروسپارل سو، نوموړی چې د کندهار والي و په دې پړاو کې مجاهدینو په کندهار ولایت کې ډېرې تاریخي کارنامې ترسره کړې.

د بیلګې په ډول که یې یادونه وکړو په ۲۰۰۳ میلادی کال او په ۲۰۰۸ میلادی کال کې دوه ځله یې د کندهار زندان مات کړ او په دواړو وارو کې یې تر یو نیم زر زیات بندیان خوشې کړل.

له دې وروسته د ارواښاد ملا صاحب له لوري چې شهید امیرالمؤمنین رحمه الله ته د اسلامي امارت د نیابت چارې ورسپارل سوې دغه وخت یې هم په خورا مسلکي توګه ټول تشکیلات رهبري کول، دا له ۲۰۰۷ م څخه نیولې بیا تر ۲۰۱۳ م پورې موده ده، دا هغه وخت وو چې د امریکایي ولس مشر لخوا افغانستان ته ۳۰۰۰۰ پوځي ځواکونه رالیږل سوي وو، د هیواد په لراوبر کې پوځي جګړې په ډېر شدت سره روانې وې او په اسلامي امارت تبلیغاتي فشارونه هم ډېر زیات وو خو منصور صاحب هڅه کوله چې په اسلامي امارت کې کومه خلا رانه سي او د مجاهدینو حوصله نوره هم لوړه سي، هماغه وو امریکا په خپله اعتراف وکړ چې یوازې په۲۰۱۰میلادي کال کې د دوی (۷۷۰) پوځیانو هلاک سوي دي.

دې موده کې د شهید امیرالمؤمنین رحمه الله یوه بله ستره لاسته راوړنه د قطر د سیاسي دفتر پرانیستل و، نوموړی ددې کار لپاره له وخته لا په جریان کې و او مرحوم ملاصاحب یې دده په سپارښتنه د پرانیستلو اجازه وکړه.

په ۲۰۱۳میلادي کال کې چې کله امیرالمؤمنین ملامحمد عمر مجاهد رحمه الله له دنیا وکوچېد، شهید منصور صاحب د اسلامي امارت غیر رسمي امیر وټاکل سو، دغه وخت کې یې هغه بې سارې کارنامه ترسره کړه چې د نړۍ ټولې استخباراتي

شبکې یې وګواښلې، څه باندې دوه کاله یې د لوی ملاصاحب په ناسوبتیا کې د اسلامي امارت چارې داسې تشکیل کړې چې نه داخلي نه خارجي کړی، پـه دې وتوانېـدلې چې د اسـلامي امارت پر تشکیلاتو دې د ګوتې نیولو ځای پیدا کړي، بلکې د مرحوم ملاصاحب د ژوند په څېر ټول کارونه منظم او پـه کامله توګه ترسره کېدل.

په۲۰۱۵ میلادي کال کې چې کله د امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله وفات اعلان سو او منصـور صـاحب رسـمي امیر وټاکل سو، دغه موده د شـهید امیرالمـؤمنین رحمـه اللـه د امارت مرحله ده چې که څه هم ډېره لنډه وه خـو پـه سیاسي، نظامي او اقتصادي برخو کې ډېرې مهمې لاسته راوړنې لري.

په سیاسي برخه کې شهید امیرالمؤمنین رحمه الله په خپله ډېر فعال و، دې لنډه موده کې په مخفي توګه بېلابېلو هېوادونو ته سفرونه وکړل، نړیوالو ته یې خپـل موقـف وړانـدې کـړ، د اسـلامي امـارت د اسـتحکام او د یرغـل لـه منګولـو څخـه د خلاصون هڅې یې پیل کړې.

په نظامي برخـه کـې یـې چریکـي جنګونـه پـه ډلییـزو جنګونو بـدل کـړل، د ولایتونـو او ولسـوالیو پـه سـطحه یـې لسګونه نظامي قطعاتې تشکیل کړې، د هیواد په ګـوټ ګـوټ کې یې د نظامي تعلیماتو معسـکرونه فعـال کـړل، پـه درسـت هیواد کې د دښمن په وړاندې پراخ نظامي عملیات ترسره کېدل او د مختلفو ولایاتو ډېرې ولسوالۍ تر کنټرول لاندې راغلې، د کندوز ښار فتحه سو، د کندهار، هلمند، فراه، غزني او ارزګان پراخې سیمې د مجاهدینو لاسته ولوېـدې، همـدا ډول پـه ټـول هیواد کې پر دښمن بریالي عملیات ترسره کېدل.

په اقتصادي برخه کې د پام وړ پرمختګونه وکـړل، دده د نږدې ملګرو په استناد چې په اقتصادي برخه کې ډېر تمرکز پر دې وې چې له مشروعو لارو څخه څه ترلاسه کړي او د هیواد په نفعه یې وکاروي؛ ځکه خـو دده زعامـت پـه وخـت کـې د اسلامي امارت اقتصاد تر مخکې ډېر پیاوړی و، مجاهدینو چې به کومې اقتصادي ستونزې لرلې هغه ټولې رفعه سوې، د نظامي مجاهدینو، معسکراتو او فرهنګي چارو ته ځـانګړي پنډونـه وضعه سول. پای




## له اسراییلو سره په ۱۱ ورځنۍ جګړه کې پـه غـزه کې ۲زره کورونـه ړنـګ شـوي او ۲۵زره نـور زیانمن شوي

د غزې چارواکي وايي له اسراییلو سره د حماس او اسلامي جهاد په ۱۱ ورځنۍ نښته کـې لـږ تـر لـږه د هسـتوګنې ۲۰۰۰ کورونه ویجاړ شوي او ۲۵ زره نور زیانمن شوي.

په غزه کې د عمومي خدماتو یو مسوول ناجي سرحان ددې شمېرې د تایید تر څنګ ویلي، چې د دغې ۱۱ ورځنـۍ جګـړې لـه املـه ۲۶۰ تنـه فلسـطینیان شـهیدان شـوي. نـاجي سرحـان اشوشیټډ پریس ته ویلي، چې د اسراییلو په هوایي بریدونو کې ۴ مسجدونه او د پولیسو لسګونه مرکزونه هم ړنګ شوي. د سرحان پر وینا یاد کورونه یا بشپړ ړنګ شوي او یا یې درنه صدمه لیدلې. له دې وړاندې د وژل شویو فلسطینیانو شـمېره ۲۵۸ تنـه ښـودل شوې وه.

د اسراییلو او حماس تر منځ په دغه ۱۱ ورځنۍ نښته کـې حماس پر اسراییلو نږدې څلور زره توغندي وتوغول. اسراییلـو هم په پرلپسې توګه له زرو زیات هوایي بریدونه وکـړل، چې لـه املـه یـې یـاده مـرګ ژوبلـه او د هستوګنې کورونـو تـه تلفـات واوښتل. ملګرو ملتونو پر دواړو لوریو غږ کړی، چې رامـنځ تـه شوی اوربند دې مراعت کړي. ملګـرو ملتونـو اندیښـنه ښـودلې، چې په غزه کې د اوښتي زیان له امله به روغتیایي اندیښنې زیاتې شي. اسراییلي پولیسـو لـه اوربنـد لـږه شـېبه وروسـته پـه اقصـی مسجد کې پر هغو فلسطینیانو یو ځـل بیـا د ګـازي مرمیو بریـد وکړ، چې پر اسراییلو یـې د بریـا خوښـي لمانځلـه. اسرایـل او حماس دواړه ددې جګړې د ګټلو دعوې کوي.

د دغې جګړې پر مهال دوه ځل د لبنان له خـاورې هـم پـر اسراییلو توغندي وار شول، چې په غبرګون کـې یـې د اسراییلـو توپخانې د لبنان خاوره په توپونو وویشته




# په دستار خوښ یم

پخوانی علمي او جهادي شخصیت
(مولوی محمدنبي محمدی رحمه اللّٰه)
۱۳۶۷ لمریز

زه بندی د یار د زلفو په تار خوښ یم
سوی سکور د عاشقی په انکار خوښ یم
عشق له خپلو له پردیو بی پروا کړم
زه په دغه استغناء استکبار خوښ یم
که رقیب را باندې وایي تهمتونه
زه د یار د تهمتو په انبار خوښ یم
نه څه اورم نه څه وایمه و چاته
پټه خوله له هرعبثه گفتارخوښ یم
هیڅ الفت مې له دې خلقوسره نه شې
زه گوشه له هر بې عقل اوهوښیارخوښ یم
زړه مې هسې شان ټوکلی دی غمونو
چې له دوست او له دښمن نه بیزارخوښ یم
د ریا له عبادته مې توبه ده
د اخلاص په میو مست او خمارخوښ یم
چې د پاکو په جامه کی ناپاکي کا
زه کنار له داسې ټک او غدار خوښ یم
که هرڅو زه مختورن یمه خالق ته
د مخلوق له غداری نه کنارخوښ یم
گوښه توب له دې عالمه مې زړه غواړې
د اغیارو له صحبته په غار خوښ یم
زمانې د تمدن نه مې زړه بد ده
زه وحشي سر په صحراء اوکوهسارخوښ یم
سیاست د زمانې مې زړه وهلی
زه د فقر وغریبی په روزگارخوښ یم
له چوکۍ او له کرسۍ نه توبه گاریم
ناست د خاورو د ایرو په انبارخوښ یم
تاج او تخت دی چې یې اهل دنیا غواړیي
زه فقیرپه خاورو ناست په دستارخوښ یم
آشنایی د خلقو واړه خرخاري ده
له دا هسی خرخاری په خرکار خوښ یم
نه توانیږم چې له ژونده لاس په سر شم
له دې ژونده د مرگي په ناتار خوښ یم
محمدي نوره گیله وشکوه بس کړه
پټه خوله په غم کې ډوب غم گسار خوښ یم

## شعر....

هر مرد شتر دار اویس قرنی نیست
هر شیشه گلرنگ عقیق یمنی نیست

هر سنگ و گلی گوهر نایاب نگردد
هر احمد و محمود رسول مدنی نیست

بر مرده دلان پند مده، خویش نیازار
زیرا که ابوجهل مسلمان شدنی نیست

با مرد خدا پنجه میفکن چو نمرود
این جسم خلیل است که آتش زدنی نیست

خشنود نشو دشمن اگر کرد محبت
خندیدن جلاد ز شیرین سخنی نیست

جایی که برادر به برادر نکند رحم
بیگانه برای تو برادر شدنی نیست

صد بار اگر دایه به طفل تو دهد شیر
غافل مشو ای دوست که مادر شدنی نیست

مولانا

## بهير

دمحبت په تارپيبلي ملغلري دعشق
ديارله ياده سره ګډې شوي خبري دعشق

شپون چې شپيلي وهل اسمان يې پرنڅارا وستی
هغه ورګډې په شپيلي کړلې سندري دعشق

تابه تيټ نه کوسپين نښانه تابه هسک ګرځوو
ته دهيوادپردنګوغرووهه وزري دعشق

مورډ اوبو پرځايې ورکړې دزلميو ويني
ګوره ثمرته رسيدلي دي شجري دعشق

وريکي نه مي شته جانان وي به زخمي ياشهيد
بيا د غزاڅخه راستون سوله ملګري دعشق

د تصورپه تال کي وځنګوي تولهٔ نرې
نن د شاهين غوندي غوټې وهي کوتري عشق

بهيره نورمودا ستومان سفرمنزل ته رسي
راته سره زربه شي داکاني اوکودري د عشق

## ورک اشنا

هير کړی رانه رنګ دي انقلاب دی د زړه سره
زړګی مي ستا ليدو پسي کباب دی د زړه سره
اخ دنګه ، غنمرنګه له کلونو څخه ورکه
در مات دي په ښکلا پسي ګلاب دی د زړه سره
په څومره لوړ هنر او ستر همت دي مهار کړی
د غرب د يرغلونو لوی سيلاب دی د زړه سره
دا ځکه زماني درپسي دومره تږي ګرځي
ليدلو کې دي اينبی رب ثواب دی د زړه سره
سپيڅلي ازادی پسي را ورکه له کور کلي
راځه ستړی اولس درته بې تاب دی د زړه سره
د حورو به دي ولي تلوسه نه وي ليدو ته
په سرو وينو دي ګل اوجود سيراب دی د زړه سره
مشهود ته ضرورت د زولنو او ځنځير نسته
تړلی ستا د ميني په تناب دی د زړه سره

## طالب جاني قافلې

شعر: مولوي منصور درمان

لهٔ حسنه ما لامالې طالب جانې قافلې دي
پلازمېنې د هېوادته را روانې قافلې دي
کابله! مبارک دې شه، اوزېری مې دربانديې
را درومي ستا تېې زړهٔ ته درمانې قافلې دي
د تور اشغال تېرېې دايمان پهٔ توره تول کړ
پهٔ سپينې ازادی باندې قربانې قافلې دي
وطنه! ستا لپاره يې ګا للي کړا وونه
دمه يې کړه پهٔ غېږه کې ستومانې قافلې دي
هماغه د اصيلو پرګنو اصيل بچي دي
هماغه د مرحوم ملا صيب ګرانې قافلې دي
پهٔ خُلوويې زمزمې د لا اله الا الله دي
دخدای پاک پهٔ توحيد باندې ودانې قافلې دي
د لطف، عاطفې او محبت پهٔ تارپېئلې
لهٔ کرکو، نفرتونو سره ورانې قافلې دي
غونچې د شفقت به د ملت پهٔ سرورکېږدي
پهٔ شوندو د يتيم د مسکا ځوانې قافلې دي
د تورو وحشتونو تورتېرې دی څيرلی
منصور درمانه! لمر غوندې روښانې قافلې دي
١٤٤٢/ ٩/ ٢١ دوشنبه

## غزل

ای نسيم سحر آرامگه يار کجاست
منزل آن مه عاشق کش عيار کجاست
شب تار است و ره وادی ايمن در پيش
آتش طور کجا موعد ديدار کجاست
هر که آمد به جهان نقش خرابی دارد
در خرابات بگوييد که هشيار کجاست
آن کس است اهل بشارت که اشارت داند
نکته ها هست بسی محرم اسرار کجاست
هر سر موی مرا با تو هزاران کار است
ما کجاييم و ملامت گر بی کار کجاست
باز پرسيد ز گيسوی شکن در شکنش
کاين دل غمزده سرگشته گرفتار کجاست
عقل ديوانه شد آن سلسله مشکين کو
دل ز ما گوشه گرفت ابروی دلدار کجاست
حافظ از باد خزان در چمن دهر مرنج
فکر معقول بفرما گل بی خار کجاست





# خبر او تبصره

خبیراحمد

**نیویارک ټایمز**: د امریکایي پوځیانو له وتلو سره د افغان ځواکونو مورال راټیټ شوی.

**تبصره :** مورال به څنګه جیګ شي سراغلی قومندان اومرستیالان یې په ارګ کې مزې کوي فیسبوکي ډوزي ولي دهغوئ زامن امریکا اوهندوستان عیش نوش اوشراب وهي د غریب په زوی قرباني ورکوي دعسکر بیچاره به څنګه مورال جیګ شي چی څوک یي پوښتنه هم نه کوي په سنګر کې وچه ډوډی اواوبه نه وررسیږي خو په ارګ کی ۱۸ قسمه غوښه خوړل کیږی، عسکرمحبوردي بیزونه ولسوالی او پوستي طالبانوته تسلیم کړي .

**خبر، محقق** "به صلح با طالبان امید ندارم و در حال مسلح سازي افرادم هستم"

**تبصره :** هیچ کاری از دست ات پوره نیست باز دلت است رقص مرده و در فرق مردم میخ بکوبی از احساسات مر هزاره دیګر استفاده سو کرده نمیتواند اګر بسیار شوقی بودی فرزندان ات را از دبی و ترکیه بخواه و جبهه ګیری کن .

**خبر، رئیس غني**: نړیوال ځواکونه په عزت او احترام سره وځي، آیا تاسې زموږ کوم تشویش ولید؟ هماغسې چې راغلي وو بېرته ځي.

**تبصره :** زرګلن بابا شړونګا بابا !!!

دفیسبوک اومیډیاپه مخ همدغه دډاډ خبري بدي ندي کنه په حقیقت کې خوله تانیولي بیرته ترتاپوري دامریکا پرستو خلکو تۀ ولاکه ځمکه ځای ورکوي، لۀ ډار او تشویشه پۀ اسهال ناروغیو اموخته شوي دي زړو زړو خوبي دوه دوه پیمپرونه اچولي.

**خبر**: سټارز انډ سټرایپس ورځپاڼې ویلي، امریکا د طالبانو د ماتولو لپاره افغانستان ته تللې وه خو د زرګونو سرتېرو دمرګ ژوبلي ترڅنګ یې دوه زره ملیارده ډالرهم ولګول خوبیایې هم طالبانوته شکست ورنکړای شو او سوله یې ورسره وکړه.

**تبصره،** جواب یې بائیډن ډیرښه ووایه هغه دعسکرو دویستلوداعلان په وخت له سپیني ماڼۍ څخه وویل: که موږ ددوحې تړون پریکړه نه وای منلي دابه مودنورو زرګونو نورو عسکرو مرګ ژوبلي ته زمینه سازی کړي وای موږ خپل ټول تکتیک په افغانستان کې استعمال کړله سولي پرته موبله لارنه لیده اورموربه موږ له خطرناک افغانستان څخه د وتلو په خاطر د سولې تړون ته غاړه ایښودله .

**خبر**: استرلیا وایی له افغانستان څخه دخپلوعسکرو ویستوسره جوخت په کابل کې ترنامعلومي نیتي سفارت هم تړي

**تبصره** : داسې ښکاري چې سفارتونه هم یوائې له امریکایی پوځیانو سره راغلي وه او اوس د هغوی له وتو سره بېرته خپلې دروازې تړي، اوس باید د نظام له دعوه دارنو پوښتنه وشي چې ستاسې د ډپلوماسۍ د ستګاه چېرته ده؟؟ په کومه خوله د نظام دعوه کوئ؟ ایا ستاسې نظام او نړیوالې اړیکې همدا وې؟؟

**خبر**: امرالله صالح: ضعف استخباراتی حکومت باعث شد تا شاګردان مکتب"سید الشهدا"کشته شوند!

**تبصره**: چرا نمی ګوید که خود استخبارات این کار را کرده است تا فضا متشنج شود وخروج قوای امریکایی معطل ګردد وشما به اریکه قدرت نامشروع ومفسد خویش دوام بدهید

د مشرانو جرګې مسلمیار: په ننۍ عمومي ناسته کې مو د ډیورند فرضي کرښې هغې غاړې ته امریکایي



## دو پیام از دو آدرس!

ریس امنیت ملی: خبرنگاران نباید به نفع طالبان اخبار به نشر برسانند.

#طالبان: خبرنگاران باید واقعیت ها را بیطرفانه بازتاب دهند.

پوځي هډو د جوړېدو، د هېواد مختلفو سيمو کې د جګړو د شدت په اړه مو د بحث لپاره داخله وزير او دملي امنيت رئيس راغوښتی و.

**تبصره** : چې پاکستان سل اړې هم امريکا ته ورکړي افغانــان ورسره کومــه ســتونزه نلــري، لکــه څنګــه چــې پاکستان ته اجازه نه ورکوو چې زمونږ په کورنيو چارو کې مداخله وکړي، دغسې ځانته هم ددې اجازه نه ورکوو چې د بل هيواد په چارو کې بېځايه مداخله وکړو دامريکا داړوځبره تاسې ته بده وای تاسې ،رژيم جرګو اوچاراواکوموولي کوکي اوبوغي وهلی اواوس يی هم وهی چې امريکايان دی له افغانستان څخه نه وزی

**داکتر غنی**: هیچ قدرتی در دنیا نمی‌تواند من را وادار کند که سوار هواپیما شوم و این کشور را ترک کنم.

تبصر: امانطور کی توره کی اورده .انطور خواهد برد هیچ تشویش نکو پیشی ما مزدور مزدور است .

**خبر**: دملی امنيت رئيس سراج: يو شمېر لوړ پوړي دولتي کارکوونکي طالبانو سره د اړيکو جوړولو هڅې کوي.

**تبصره**: هههه، دا خو هغه حالت ده چې ته وربانديې خبريږ هغه پټې رابطي چې دقول اردوګانو په سطحه دې له هغو دې خدای مه خبروه

**خبر** : يوازينی افغان يهود: که طالبان بيرته راشي هيواد پريږدم.

**تبصره**: ځکه ولاړ شه چې دکليسا لښکر ټول کډه په شا سو روان دي او دکليسا ساتونکي اومزدوران لکه اشرف غنی، داکتر عبدالله، سیاف، محقق، سالیگی، مخب، اوکوت ماکوت ټولو پاسپورتونه اوبيکونه تيارکړي

محب وايي، له افغانستان څخه د امريکايي ځواکونو وتلو وروسته دځان دفاع کولی شو!

**تبصره**: غلامګيه دومره باتور نه يې ځوک به دي په سترګو هم ونه ويني

خلک به حيران کړي چې په کومه و تښتيدي .

ټول به هندوستان ته تښتي داروپا اوامريکا پاسپورتونه مو نور ناچله دي مخ به يې هم ونه ګوری !!!

**اشرف غني** : تر ځکمې لاندې د اوبو مديريت کولو پر يو پلان کار کوو چې ډېر ژر به يې عملي چارې پيل شي.

**تبصره** : دکابل دکوڅو او سرکونو اوبه خودي داسې مديريت کړي چې کله باران وسی بيړی پکې ګرزی ، هغه کونړ سيند خو دځمکي په سر بهيږي هغه اول مديريت که بيا دځمکي تل ته کوز سه

**امرالله صالح** : طالب زندانيان دې اعدام کړل شي !!

**تبصره** : ساليګل دې هومره مړی خولي ته پورته کړي چې څومره هضمولی شي؛ دالله په مرسته به پاتي او ټول زندانيان داسې خلاصيږي لکه هاغه ۵۰۰۰ زره تنه چې په خپل قوت اوعزت ازاد شول( غلام تباه اوبرباد ده)

**محب** : نظام فاسد بهتر از بی‌نظامی است!

**تبصره** : بلی؛ برکت ! نظام فاسد است که بانوی اول رئيس جمهور وبانوی مشاور امنيت ملی يهودي ونصرانی است !!!؟







## مهمه، خو عادي پوښتنه:
# د روانې جګړې بنسټيز لامل څه دی؟

خالق یار احمدزی

یوه عادي خو تر ټولو مهمه پوښتنه؛ ولې افغانان سره جنګیږي، ځوک يې جنګوي، د څه لپاره او موخې يې څه دي؛ هغه سوال چې د هر افغان او د نړیوالو په خوله جاري دی خو ټول ترې مختلف ځوابونه لري.

څوک يې د کفر او اسلام جګړه یادوي، ځینې يې د پاکستان /امریکې استخباراتي جګړه بولي، څوک يې د روس او امریکا ښکروره دښمني یادوي، چاته بیا د مافیايي کړیو لخوا تنظیم شوې اقتصادي معرکه ښکاري؛ خو واقعاً او ربښتیا څه دي او په دې برخه کې څه ددې لامل شوي چې د اشغال له خاتمې وروسته يې هم د جګړېزو سکروټو د "جل ساتلو" امکان زیات کړی دی.

له ګڼو مشرانو، د نظر له خاوندانو، علماؤ او پوهانو سره زما د مرکو او بحثونو نتیجه داده چې دا جګړه نه کوم جغرافیوي اړخ لري، نه يې اقتصادي ګټو ته څوک ګوري او نه هم ترې د بلې دنیاوي متاع د ترلاسه کیدو څرکونه شته.

د دوی په وینا، ددې جګړې لوی سبب پخواني امریکایي ولسمشر ۲۰ کاله مخکې روښانه کړی وه. "جورج ډبلیو بوش" په ۲۰۰۱ز کال کې دې معرکې ته د صلیبي اسلام ضد جګړې نوم ورکړی وه او د دیموکراسۍ او سیکولریزم پر حاکمیت يې د ټینګار له امله د افغانستان په څیر کوچني هیواد باندې د لوړې کچې برید وکړ، ترڅو دلته دیموکراتیک نظام برپا او غربي کلتور پلی شي؛ خو د تریلیونونو ډالرو تر خسارې، د زرګونو عسکرو تر وژل کیدو او نړیوال اعتبار له زیانمنیدو پرته يې هیڅ هم ترلاسه نه کړل.

### ولې دا سوژه دوی ته مهمه ده؟

ورانـدې مې یادونه وکړه چې ددې جګړې بنسټ د صلیبي جګړې په نوم اېښودل شوی او دا مهال یاده جګړه د یوه سیکولر "دیموکرات" نظام او یوه اسلامي نظام پر سر روانه ده؛ ارګ او ملاتړي يې هڅه کوي د جمهوریت او دیموکراسۍ اصل ته په کتو سره یو آزاد سیکولر نظام برپا کړي، ټاکنې د دیموکراسۍ د یوه اصل په توګه يې پر افغانانو تحمیل کړي او د میرمنو او بیان لغړې آزادۍ ته ترویج ورکړي، خو مقابل لوری يې ورسره نه مني.

له همدې کبله اشرف غني هره وینا کې [جمهوریت] خپله سره "کرښه" یادوي، خو د اسلامي نظام په هکله هیڅ هم نه وايي.

که ارګ دا یوه سوژه "اسلامي نظام" ومني، جګړه په سراسر افغانستان کې د یوې شیبې لپاره هم دوام نه پیدا کوي او که ترې انکار وکړي، جګړه به د لسیزو لپاره غځیږي.

بالمقابل؛ که طالبان په خپلو ټولو قربانیو پښه کیږدي او د جمهوریت او دیموکراتیک نظام منلو ته چمتو شي، نو سملاسي به د کفري نړۍ له خوا د نازولو او معززو افغانانو په توګه ومنل شي؛ خو دا چې اوسمهال دواړه ناشوني ښکاري، نو اټکل کیږي چې تر هغو چې یو فکر پر بل نه وي بریالی شوی، دا جګړه به روانه وي؛ چې له یوې خوا به یو افغان د جمهوریت ساتنې په صف کې د خپلې بیچارګۍ او بچیانو د ساتنې له امله د خپل مسلمان ورور وژنې ته ورګډیږي او په دې باطله لار کې به مري، له بل لوري به يې د اکا زوی د اسلامي نظام د حمايې له امله په مرګ ګوابنل کیږي.

پورته تحلیل ته په کتو سره جوتیږي چې تیره ۴۰کلنه جګړه که له هیواده د جغرافیاوي دفاع جګړه وه، خو مهم اړخ يې دیني شهامت وه، چې افغانانو له ځانه څرګند کړ، یوه لسیزه يې له کمونیزم سره ډغرې ووهلې او اوس يې له سیکولریزم سره وهي؛ نقطه د اشتراک يې هم لا دینیت وه او بس.

### ولې سیکولریزم مهم دی؟

سیکولریزم د ټولو انساني چارو سمبالولو په موخه یوازې پر انساني عقل زور اچوي، په شخصي ژوند کې د خدای منلو ته اجازه ورکوي، خو خپلې ټولنیزې چارې همدغه خدای ته نه ورسپاري. یانې سیکولریزم پخپله یو "نظام" دی.

یوه مذهب "دین" ته هم پر ځان د برلاسي اجازه نه ورکوي. کـه کوم مـذهب غـواړي د دوی تـر سیوري لانـدې و اوسي، دوی کومـه ستونزه نه لري.

## توپیر یې څه دی؟

سیکولریزم چې ځان د بشر په لاس یو بشپړ جوړ شـوی "دیـن" بولي، تر هغو غلی وي چې مذهب مداخله نه وي کـړې، کـه مـذهب لاسوهنه وکـړي، سـیکولریزم یـې پـر وړانـدې راپـاڅي او خوځښـت پیلوي. سیکولریزم او لیبرال دیموکراسي شاید د لویدیځ د عنعـاتو سره برابره او د هغوی د ټولنو د پرمختګ لپاره ګټوره وي، خو پـه هـیڅ ډول هم دغـه مفکـوره د مسـلمانانو او اسـلامي ټولنـو لپـاره ګټـوره نـه شي ثابتیدای.

هغه مفکوره، چې د یوملت د عقیدوي مسائلو، دیني ارزښتونو، ملي نوامیسو او تاریخي غرور سره ټکر لري، هغه به څنګه د هغـوی د پرمختګ وسیله جوړه شي؟!

سیکولرانو ته د دین وړه خبره ستر جرم ښکاري؛ له همدې کبلـه د اسلام او سیکولریزم ترمنځ ټکر دی؛ اسلام او نور مذهبونه بیخي سره توپیر لري. اسلام هغه دین دی چې د ژوند هـر اړخ پـه پـام کـې نیـول شوی او هر څه ته خپل قوانین لري.

دا هغه دین دی چې د ژوند هر لوري تـه یـې پـام کـړی او هـیڅ جزئي مسئله یې هیره کړې نده.

اسلام مقننه قـوې "پارلمـان" او نـورو بنسـټونو تـه دا اجـازه نـه ورکوي چې له الله او د هغه رسول نه په سرغړاوي د اکثریـت رایـو پـه نامه پریکړې وکړي؛ اسلام هېڅکله د بل قانون تـر سـیوري لانـدې نـه شي اوسېدلای.

اسلام خپلو لارویانو ته وایي چې که هر چېـرې سـیکولریزم یـې مخ کې ودرېد، په پوره ځواک دې هغه لرې کړي، تـر هغـو بـه هڅـې کوي، تر څو یې چې ټوله نړۍ کې اسلام نه وي خپور کړی.

اسـلام د پادریـانو غونـدې د انسـانانو زړه او فکـر نـه بنـدوي، ساینـسي څېړنـې منـي، پـر کاینـاتو او طبیعـت ژور غـور کـول، پـټ حقیقتونه یې رابرسېره کول، پر بېلابېلو مخلوقـاتو ریسرـچ او څېړنـه د اسلام فطرت دی.

اسـلام هغـه دیـن دی چـې ډېـرې پېـړی بریـالی پـاتې شـوی؛ مسلمانانو د نړۍ پر ستره برخه، خورا ډېر وخت حکم وچلاوه. سره له دې چې ډېرې مبارزې ورسره وشوې؛ خو د لارویانو په هڅـو یـې بیـا هم مسلمانان په پښو ودرېدل.

افغانستان کې؛ په لسګونو تلـویزوني چینلونـه، چـې یـو یـو یـې شاید میلیاردونه ډالر بودیجه ولـري؛ پـه سـلګونو رادیوګـانې، مجلـې، کتابونه، اشتهارونه، کانفرانسونه، سیمنارونه، سفرونه او په نورو داسې بېلا بېلو هڅو تر اوسه دومره بې اندازې بودیجه مصرف شـویده چـې څـو واړې د دې هیـواد د سـتونزو د لـه منځـه وړلوپـاره بـس وه. دغـه مصارف لا روان دی، خو تـر اوسـه د یـو څـو خرڅـو شـوو پرتـه نـور هیڅوک یې هم د سیکولرزم ددغه ناولې پدیدې پـه اهمیـت او قبلولـو باندې قانع نه شو کړای او یواځې د یو څو ضـمیر پلورونکـو سـرو او میرمنو د پاروونکو فعالیتونو، دیو څو خرڅو شوو رسنیو د سیکولریزم د ډول د غږولو او په یو نوم او بل نوم فقط د فعـالیتونو د تـرسره کولـو پرته یې نوره هیڅ پایله هم نده ورکړې.

## د وصال کیف

وینـو مـې ثنـاء ویـل ، دردونـو مـې ثنـاء ویـل
داسې عشق کې ورک وم چې زخمونو مې ثناء ویل

غوښې د وُجـود مـې ، پـه خـاورینو وینـو پټـې وې
زړه چاتـه پـه طمعـه وُ ، هډونو مـې ثنـاء ویـل

څـه د لامثالـه کیـف ، پـه غېږکـې درد نیـولی وم
ستا سپېڅلي شـان تـه، پـه دُرودونـو مـې ثناء ویـل

ګـرد ده سـنګرو مـې پـه ژوبلَـی بـدن پـورې وو
عشـق راتـه حیـران وُ ، ارمـانونو مـې ثنـاء ویـل

څـه دکیـف شـیبه وه، څـه احسـاس راسره مـل وُ چـې
بـېلا بېلـو غوښـو ، او رګونـو مـې ثنـاء ویـل

جنګ وُ پـه دیـن ننګ وُ ، جهادي لښکرې مستې وې
زه دګـر کـې پـروت وم، احساسـونو مـې ثنـاء ویـل




د استاذ او شاګرد ترمنځ ربط ډېر زيات ضروري دی او همدا زموږ د ديني مدارسو امتيازي شان دی؛ زموږ د مدارسو د قيام هدف خلکو ته يوازې د معلوماتو انتقال ندی بلکې سالمه روزنه هم ډېر ستر هدف دی، له ربط او تړاو پرته د شاګرد روزنه، نه شي کېدای.

# نوميالی عالم او پیاوړی ليکوال مفتي عبدالکريم حسن زوی

پوښتنه ـ جناب مفتي صاحب حسن زوی مدظلـه العـالي که يو طالب العلم خپل فنون او اهم نظامي کتابونه پـه پابنـدی، دقت، ژوره مطالعه ونه وايي موقـوف عليـه اوهـم بـه يـې دلـويي دورې دويلو په کال له څه ډول مشکلاتوسره اوعدم فهم سره لاس اوګريوان وي او چې کله دتدريس په مسندکيني هلته بـه لـه څـه ډول حالت اوامتحان سره مخ کيږي؟

جواب: الحمد لله وحده والصلاة والسـلام علـى مـن لا نبـى بعده اما بعد، دڅرک مجلې محترم مدير صاحب په درانه حضـور کې دا عرض کول غـواړم چـې ډېـرې پرځـای، مهمـې او د وخـت دغوښتنې سره سمې پوښتنې مـو راپورتـه کړيـدي؛ داسـې مهمـو پوښتنو ته سم ځواب ويل دلويو علـماءو کـار دی؛ زمـا نـاچيز نـه تاسې درانه د دې پوښتنو دجوابونو غوښتنه کړيده نو د دې لپاره چې دحکم تعميل وشي هڅه به وکړم چې په اختصـار سره داسـې څه وليکم چې درانه او خواږه طالبان ترې يوڅه ګټـه پورتـه کـړي خو مشوره مې دا ده چې يو وخت همدا پوښتنې د يو لـوی،زيرک، تجربه ناک خداپرسته مشرعالم نه هم مطرح شي.

که داسې يو عالم دا پوښتنې تفصيلي ځواب کړې او د يوې کوچنۍ رسالې په شکل چاپ شي نو زموږ دراتلونکو نسلونو لپـاره به دلارې مشال وګرځي.

د پوښتنې د اصل جـواب نـه وړانـدې پـه لنـډ ډول دومـره عرض کول غواړم چې پخوا چې زموږ په درسونو کې کوم کتابونـه ويل کېدل يا اوس زموږ په مدارسـو کـې د درس نظـامي پـه نـوم کـوم نصـاب رائـج دی دا ډېـر قـوي نصـاب دی؛ لـه افغانسـتان، پاکستان، هند او بنګله دېش پرتـه د نـورې اسلامي نـړۍ پـه يـو هېواد کې هم داسې قوي ديني نصاب عمومي رواج نه لري.

په زاهدان کې دسني مسلمانانو په مدرسـو کـې هـم همـدا نصاب درس کېږي؛له جنګ نه وړاندې په يمـن او شـام کـې هـم دمسلمانانو په څو نا دولتي مدرسو کې قوي نصابونه رائج وو.

داسې مو اورېدلي چې دسعودي په ابها کې علماء شخصي درسونه لري چې د دولتي جامعاتو په پرتله پکې زيات کتابونه پـه ښه طريقه درس کېږي.

ماتـه چـې څـومره معلومـات دي پـه؛ جنـوبي افريقـا، برتانې،آسترالیا، کاناډا او امريکا کې هم دجنوبي آسيا علماءکرامو داسې مدرسې جوړې کړيدي چې همدا نصاب پکې درس کېږي.

خو افغانستان، پاکستان، هند او بنګله ديش بيا د نړۍ هغه هېوادونه دي چې علماء او شخصي مدارس پکې الحمـد للـه ډېـر زيات او ددې څلور واړو هېوادونو په کابو ټولو مدارسو کې همدا واحد قوي نصاب رائج دی.

رښتيا داده چې دا نصاب په ډېر دقت جـوړ شـوی؛ څـومره چې قوي دی هغـومره اشـمل هـم دی؛ د تفسـير، حديث،عقايـد، فقه، اصول فقه، دعربي ژبې دعلومو تر څنـګ پکـې فـارسي ادب، خطاطي ،علم طب، علم هيئت، منطق، رياضي اوفلسـفې تـه هـم ځای ورکړل شوی و چې دا ټول د وخت اشده اړتيا وه.

که په صحيح معنو يوطالب دغه پوره کړي؛ اول دهر علم په ابتدائي کتاب ځان پوه او بيايې لوی کتابونه ووايـې ځـه پـه پـوره اطمينان دا ويلی شم چې داسې طالب نه يوازې دا چې ښه عـالم جوړېدای شي بلکې ښه منتظم،ښه وينـاوال، ښـه سياسـتوال او د انساني ټولنې د اخلاقي تعميـر ښـه معـمار او فعـال خـدمتګارهم جوړېدای شي.

دا داسـې مـدعی ده چـې فکـر کـوم اوس بـه يـې د دلايلـو دوړاندې کولو اړتيا هم نه ويني،(عيان را چه بيان؟) موږ د امارت په تېرې دورې او اوس د صليبي اشغال په مقابل کـې دجهـاد پـر مهال وليدل چې کومـو مسـئولينوچې ښـه علمونـه کـړي وو؛ ښـه عالمان وو هغوئ خپل مسئوليتونه په ډېر ښه شان سره ادا کړل.

نوکوم طالبان چې فنون او خصوصاً نحو او صرف يې سم نـه وي ويلی؛ ځان يې پرې نه وي پوه کړی او هسې دلاندې نـه پورتـه

درجې ته په تللو خوشاله شوی وي هغه دوه کرښې عبارت سم نه شي ویلی نو په جلالین، بیضاوي،په دریمې او څلورمې هدایه به څه پوه شي؛ دابېخي واضحه خبره ده؛ دطالبی او تدریس په ټوله زمانه کې ما کوم داسې طالب ندی لیدلی چې صرف او نحو یې نه وي یاد او په نورو کتابونو دې سم پوه شي.

داسې کمزوري طالبان چې فارغ شي نو خبره په تدریس کې دمشکلاتو نده بلکې دوئ هیڅ د تدریس اهل نه وي؛ په ځینو مدرسو کې چې دمهتممانو کمزوري زامن یا نور قریبي خپلوان مدرسین شوي وي په لسګونه کلونه یې د تدریس ووځي خو طالب ورنه ترپایه په یو کوچني کتاب کې هم مطمئن نه شي.

په لویو مدرسو کې داسې ګڼ مدرسین هم شته چې دښه علم درلودلو له امله نه بلکې دکومې بلې وړتیا درلودلو له امله مدرسه کې اخستل شوی وي خو یو یا دوه کتابونه هم تدریسوي؛ داسې ملایان سپین ږیري شي خو طالبان ورنه نه څه زده کړي او نه ترې خوشاله شي.

زما هدف دا ندی چې ګیني چا طالبی کې صرف او نحو زده نکړل نو وروسته یې نه شي زده کولای یا پرې نه شي پوهېدلای.

له فراغت نه پس هم که څوک خپل دې کمي ته متوجې او ازاله یې وکړي ښه عالم ترې جوړېدای شي؛ موږ دیوشمېرلویو عالمانو په باره کې اورېدلي دي چې دطالبی زمانه کې کمزوري وو؛ کوښښونه یې نه و کړي خو دفراغت نه پس یې دکوم ښه عالم نه دصرف او نحو یو یو کتاب ویلی یا ذهینان وو او دتدریس په زمانه کې یې خواري کړي وي نو ترې بیا ښه عالمان جوړشویدي.

پوښتنه ـ استادان دطالبانو دزدکړي په ابتدایي، منځنیو او لوړو زدکړو په مرحلو اودکتابونودتدریس په وختونوکې څومره رسالت اومسؤلیت لري چې هم طالب له عبث وخت تیرولو وساتي اوهم یې ذهین اوځیرک وروزي نوستاسې له نظره هغه کوم حکمت عملي اونکات دي چې استادان یې بائید دخپلو طالبانو په باب په نظرکې ولري؟

اول خو د دې ډېره اړتیا ده چې هره مدرسه لیلیه ولري؛ د درس، مطالعې، تکرار، تلاوت، لمونځ، ډوډی خوړلو، خوب، لوبو او تفریح اوقات یې معلوم او منظم وي؛ طالب العلم باید په همداسې مدرسه کې دننه وه اوسېږي تر څو یې وختونه دضایع کېدو نه بچ شي؛ په پابندی سره تېر سبقونه تکرار او راتلونکي مطالعه کړي؛ په طالبی کې په کتابونو د پوهېدلو لپاره د تکرار او مطالعې ډېر زیات اهمیت دی.

دا چې په اوس وخت کې د عصري او دیني علومو د زده کونکو لپاره تر ټولو مهلک شی موبایل تلیفون دی نوځکه زموږ مدارسو کې دموبایل تلیفون په کارولو بندیز وي، په مدرسه کې دننه د اوسېدلو لویه ګټه دا هم ده چې دموبایل کارولو او د ورته هر تاواني شغل نه به طالب العلم په امان کې وي. استاذ باید خپل هر شاګرد په نوم وپېژني او په نوم یې راوبلي؛ که وکولای شي داوسېدلو دځای، اقتصادي وضعیت ستونزو او مشکلاتو نه دې یې ځان خبر کړي.

ټولو طالب العلمانو ته برابره توجوپکار ده؛ دنورو ملګرو تر مخه د یو طالب العلم رټل او سپکول دطالب العلم په روحیاتو ډېره بده اغیزه کوي نوترې ځان ساتل ضروري دي.

دمبتدي طالب العلمانو نه د زوړ درس اورېدلو ته ځانګړې پاملرنه پکار ده؛ ترڅو چې ټولو زوړ درس نه وي یاد کړی پرمخ تلل ندي پکار؛ که یو طالب العلم دصرف او نحوې یو یو کتاب یاد کړي او پرې پوه شي دا داسې ده لکه په ټولو علومو چې پوه شو؛ دطالب دپوهې او ناپوهی ټول مدار په بنسټ دی که بنسټ یې سم و طالب به لایق وي او که یې بنسټ کمزوری و نو به نا لایق وي، کوم کتاب چې ویل کېږي عبارت یې هره ورځ په نوبت نوبت یوطالب وواېي؛ استاذ یې ترې په غور واوري او خطاوې یې ونیسي؛ پدې طریقه به د طالب د نحوې او صرف تمرین کېږي چې ورته اجراء ویل کېږي؛ اجراء ډېره ضروري او ډېره ګټوره ده؛ که یو طالب ډېر هم لایق وي خو چې اجراء یې نه وي کړې نو دعربي عبارت په لوستلو کې ورنه خطاوې زیاتې کېږي؛ پخوا چې زموږ په درسونو کې د استاذ تر مخه د عبارت ویل نه و رواج نو ښه عالمان به وو خو که به یې عربي عبارت ویلو نو خطاوې به پکې ډېرې وې.

دخپل هر شاګرد د استعداد تر څنګ د هغه د احساساتو نه د استاذ خبرېدل هم ډېر اړین دي ترڅو یې دافراط او تفریط دواړو نه بچ او دشریعت دمزاج سره سم یې د اعتدال په لار د روانولو هڅې وکړي.

استاذ چې دشاګرد دحال نه ځان خبروي په همدې سره د دواړو تر منځ تړاو جوړېږي.

د استاذ او شاګرد ترمنځ ربط ډېر زیات ضروري دی او همدا زموږ د دیني مدارسو امتیازي شان دی؛ زموږ دمدارسو دقیام هدف خلکو ته یواځې دمعلوماتو انتقال نـدی بلکې سالمه روزنه هم ډېر ستر هدف دی، له ربط او تړاو پرته دشاګرد روزنه، نه شي کېدای زموږ د اسلافو همدا طریقه وه؛ دشاګرد او استاذ په منځ کې به ډېر قوي ربط و نو چې څرنګه به استاذان لوی خلک وو شاګردان به یې هم لوی خلک وګرځېدل؛ اصلاً دا طریقه پېغمبرانه طریقه ده؛ د رسول الله صلی الله علیه وسلم د او دهغه د شاګردانو تر منځ د خورا قوي اوبې ساري ربط په برکت اصحاب کرام کاملان رجال وګرځېدل.

پوښتنه ـ مفتي صاحب تاسې وړه اولویه دوره چیرته اوله چاڅخه لوستې اوچې کله فارغ شوی اودستارفضیلت مو وتاړه خپلومشرانو استادانوتاسې ته هغه کومې مهمې توصیې وفرمایلې چې دتدریس په مهال یې باید په جدي توګه په نظرکې ولرۍ ترڅوهم الهي رضا حاصله کړی اوهم دتدریس شانداره موقع په لاس درشي اودخلکومنځ کې مقبول وګرزۍ؟

وړه او ستره دوره مې په جامعه دار العلوم کراچۍ کې کړېدي. وړې دورې کې مو بیضاوي شریف د مولانا شمس الحق صاحب رحمه الله نه ویلی؛ مولانا شمس الحق دمنقولاتو ترڅنګ دمعقولاتو هم ډېر ستر عالم او په صحیح معنو د جامع المعقول والمنقول لقب وړ و؛ نوموړی دمفتي محمد رفیع عثماني اومفتي محمد تقي عثماني هم استاذ و؛ بلکې په دارالعلوم کراچۍ کې له دوه درې استاذانو پرته د ټولو استاذانو استاذ و؛ الله تعالی دې یې قبر منور او فردوس اعلی نصیب کړي.

اول مشکوة مو دمفتي محمد شفیع دلمسيـ مولانا محمود اشرف دامت برکاتهم نه ویلی؛ مولانا محمود اشرف صاحب درس ډېر برکتي درس و؛ په اول مشکوة کې یې نه اړین مباحث او نه هم دکوم حدیث ترجمه پرېښې وه خو کتاب یې ډېر مخکې ختم شوی و؛ ډېر غوره مربي و او دطالبانو داصلاح ډېره هڅه به یې کوله؛ دتشدد، افراط او تفریط او دجمهورو علماءو نه د مخالفت اوشزوز نه دځان ساتلو ډېرکلکه توصیه به یې کوله؛ که رښتیا ووایم دارالعلوم ته د تللونه وړاندې مې فکر کې اعتدال نه و؛ که اعتدال مې وپېژندلو دا دهمده استاذ محترم د توصیو په برکت؛ الله تعالی دې اوږد صحت مند ژوند ورکړي.

دوهم مشکوة مو د درس ترمذي دمرتب مولانا رشید اشرف رحمه الله نه ویلی؛ مولانارشید اشرف دمولانا محمد شفیع رحمه الله تعالی دلور له طرفه لمسی و؛ ډېر خواري کښ او په سبق دطالبانو دپوهولو زیات حریص و؛ په طبیعت کې یې ډېره سادګي او ژوند یې ډېر بې تکلفه و؛پرما یې خصوصي شفقت دا و چې دجمعې په شپه به یې کورته راغوښتم او د درس ترمذي په څلورم جلد کې به یې رانه کار اخیستلو.

دریمه هدایه مو دمفتي عزیز الرحمن صاحب نه ویلې وه؛ مفتي صاحب د سوات دستر نامتو عالم برتانې بابا ورور دی؛ مفتي صاحب د ډېر ښکلي صورة او سیرت څښتن دی؛ الله تعالی ډېر سترسیاسي بصیرت ورکړیدی؛ دالبلاغ مجلې مسئول مدیر دی او ورته ډېره ښه جامعه سرمقاله لیکي؛ ډېر محقق عالم دی؛ په طالبانو کې دا مشهوره وه چې مفتي صیب هغه خبره کوي چې یې وربانديې سل په سلو کې یقین وي او چې وربانديې یې یقین نه وي نو په نه پوهېږم ویلو کې هیڅ عار نه محسوسوي؛ الله تعالی ډېر عالي اخلاق ورکړیدي؛ دکراچۍ دعلماءو ژوند ډېر مصروف او منظم دی؛ څوک یې چې بې ځایه یوه دقیقه هم اخلي سخت پرې خفه کېږي خو مفتي صیب سره به که د اولی درجې طالب ودرېدلو تر څو به چې ترې طالب اجازه نه وه اخستې مفتي صیب به نه روانېدلو.

مابه ترې د درس په جریان کې پوښتنې کولې بیا یوه شوم چې ډېرې پوښتنې طالبانو باندې ښې نه لګي نو که کومه پوښتنه به مې لرله مفتي صاحب به چې دمازیګر لمانځه نه پس کور ته تللو ورسره به پوښتنې کولو لپاره یوځای شوم؛ له لاس نه به یې ونیولم؛ تر څوبه چې ما د هغه لاس نه و پرېښی زما لاس به یې نه پرېښودلو؛ د درس د اسانولو او دطالبانو دپوهولو ډېر لوړ استعداد الله تعالی ورکړیدی، الله تعالی دې ورته اوږد صحت مند ژوند ورکړي.

څلورمه هدایه مو دمولانا افتخار احمد اعظمي صیب نه ویلې وه؛ مولانا افتخار احمد صیب د ښه علمي استعداد ترڅنګ ډېر ښه مقرر دی، ډېر خوش طبعه انسان و؛ که به یې درس په ساعتونو روان و څوک به یې په درس کې نه تنګېدلو؛موږ ته یې په شپږمه درجه کې جلالین هم ویلی و، څوی یې خلیل احمد اعظمي هم موږ سره په شپږمه درجه کې و خو دهغه شتون داستاذ محترم دخوش طبعۍ او ټوکو ټکالو مانع نه ګرځېدلو؛ هندوستانیان ډېرنازک طبیعتونه لري خو مولانا افتخاراحمد صیب ډېر بې تکلفه او جفاکش انسان و؛ موږ چې موقوف علیه کې وو په رخصتۍ کې استاذ محترم زموږ د درس پنځو ملګرو

سره یو ځای تر خیبر او ګلګت پورې یوځای په تفریحي سفر تللی و؛ ملګرو ویل: په سفر دروانېدو پر مهال استاذ محترم وویل: دارالعلوم ته بېرته تر رارسېدو به ملګرتیا وي استاذي او شاګردي ختم!

په ستره دوره کې مو نسائي موطأ امام مالک موطأ امام محمد هم له مولانا افتخار احمد اعظمي نه ویلي و؛ ترمذي ثاني د مولانا محمود اشرف صیب نه، مسلم ثاني د مفتي عزیزالرحمن صاحب نه؛ مسلم اول دمفتي رفیع عثماني صیب نه ابو داود دمولانا شمس الحق صیب نه، ترمذی اول دشیخ الاسلام مفتي تقي عثماني صیب نه او بخاري دواړه جلدونه مو دسیدي ومرشدي شیخ سحبان محمود صیب رحمه الله تعالی نه ویلي و.

مفتي محمد رفیع عثماني او مفتي محمد تقي عثماني خو هرڅوک پېژني او شیخ سحبان محمودصیب په معنوي لحاظ دومره عظیمه هستي وه چې ماسره یې دبیانولو لپاره الفاظ نشته.



پوښتنه ـ دبخاري، ترمذي اومشکات کومي شرحي ستاسې زیاته تنده ماتوي اوتاسې ته داحادیثوددغومهمو زخیرو دتدریس په مهال کماحقه کمک کوي اوګټه ورنه اخلې؟

تاسې د ۳ کتابونو دشروحو په هکله پوښتنه کړېده؛ د احادیثو د کوم کتاب کومه شرح بهتره ده؟ ددې جواب زما نه بلکې دلویو علماءو کار دی؛ ماچې د بخاري درس پیل کړ دکتاب دحل لپاره مې مختلفو شروحو ته مراجعه کوله خو زیاتره به مې مشکل په فتح الباري او نصرالباري حل کېدلو؛ نصرالباری اردو شرح ده د شیخ الاسلام حضرت سیدحسین احمد مدني رحمه الله تعالی شاګرد مولانا محمد عثمان غنی لیکلی ده؛ ترتیب یې ډېر ښه دی؛ دحضرت شیخ سلیم الله خان رحمه الله شرح کشف الباری ډېره بهترینه شرح ده خو اوږده ډېره ده.

له عربي پرته له نورو شروحو نه مونږ خپل شاګردان منع کوو؛ مدرسین هم چاته دا حال نه وایې چې څه دکتاب دحل لپاره د اردو کومه شرح یا د مشرانو استاذانو دپښتو کوم تقریر مطالعه کوم؛ پکار همداسې ده چې دعربي شروحو نه استفاده وشي څکه چې د اردو یا پښتوپه شروحو او تقاریرو اکتفاء ورو ورو دسړي استعداد کمزوری کوي خو که د مشرانو عالمانو دغه شروح یا تقریرونه مدرس ددې لپاره یو ځل وګوري چې خپله پوهه پرې وتلي او دا ورته معلومه شي چې خپلې مطالعې کې چې څنګه پوه شوی آیا سم پوه شوی که نه ؟

اوس چې مکتبة البشری کوم صحیح البخاري چاپ کړی دا هم ډېر لوی غنیمت او ورسره لویه اساني راغلی؛ چاپ یې اعلی دی اوپکې د سهارنپوري صاحب تعلیقات، د علامه سندی رحمه الله تعالی حاشیه او دشیخ زکریا رحمه الله ابواب او تراجم دي.

دمشکوة د درس لپاره خو څه دغور غوښتو مولانا صیب حاشیه، مرقاة المفاتیح او طیبی ګورم،بلې شرحې ته مې تر اوسه اړتیا نده راغلی.

دترمذي شریف لپاره خو دشیخ الاسلام محمد تقی عثماني صیب مشهوره شرح (درس ترمذی) تقریباً مشکل حل کړی؛ شاید داسې مدرس به نه وي چې یاده شرحه ونه لري خو ترځنګ یې دمفتي محمد فرید رحمه الله منهاج السنن او دعلامه بنوري رحمه الله معارف السنن شتون هم ډېر ګټور او اړین دی.

پوښتنه ـ ددرس تدریس په مهال له خپل ځاني کوشش،ستومانۍ او ځیرکتیا باوجود ځاني تقوا، دعا اوریاضت څومره سړی دکامیابۍ اوبري مقام ته رسولی شي؟

د رس تدریس لوی عبادت او د دین ډېر ستر خدمت دی؛ که د دیني علومو د درس تدریس او تعلیم اوتعلم نه وي نو دین؛ دیني علوم او صحیح عقیده او فکر به هم نه وي؛ د دین خدمت په قابلیت ندی بلکې په قبولیت دی؛ الله تعالی خپلو مقبولو بندګانو ته د دین دخدمت توفیق ورکوي؛ ډېر ذهین او زیرک خلک وي خو چې اخلاص؛ خدا پرستي او عاجزي پکې نه وي نو ددین دا عظیم خدمت یې نصیب نه شي.

د دې لپاره چې یو مسلمان عالم په دنیا کې ډېر علمي خدمت وکړي او دا خدمت یې مقبول او داجر اوثواب باعث شي ورته د اخلاص؛ دګناهونو نه دځان ساتلو او ډېرودعاګانو اړتیا ده.

پوښتنه ـ محترم مفتي صاحب طالبانوته دې په مشخص ډول نصیحت اویادونې څه دي چې داوسني دور طالبان ورسره لاس اوګریوان دي اوباید په هرقیمت ځانونه ترینه لیري وساتي؟

ځه کوچنی سړی یم؛ له خپل لوري به څه ووایم ؟ ښه به دا وي چې د خپلو مشرانو استاذانو یودوه نصیحتونه رانقل کړم؛موږ ته ښو ځلی مفتی محمدتقی عثماني صاحب او مفتی محمد رفیع عثماني صاحب فرمایلي و چې موږ ته به خپل والد محترم مفتی محمد شفیع رحمه الله تعالی فرمایل: د دین د لږ او ډېر خدمت نه زیاته مهمه داده چې د دین دخدمت په نوم د دین، علم او اهل علم د بدنامۍ سبب ونه ګرځئ ! که کله پوه شوئ چې دین بد نامېږي؛ دعلم او اهل علم وقار او عزت ته تاوان رسېږي نو بیا له مدرسې وځئ! اومدرسې ته ښه ستر قلفونه واچوئ! په داسې حالت کې بیا تاسو د مدرسې په روان ساتلو مکلف نه یاست.

موږ باید عامو مسلمانانو ته ډېر دقدر په نظر وګورو، پرې ښه ګومان او رحم وکړو؛ ورسره دخبرو کولو او برخورد طریقه زده کړو؛ او موږ علماء په خپلو منځونو کې د داسې خبرو او حرکتونو نه ځانونه وساتو چې زموږ دبدنامۍ سبب ګرځي؛ اوس کشران عالمان ډېرو مشرانو ته دمناظرو چیلنجونه ورکوي او په مناظرو کې یو بل ته بدې ردې وایې چې دا ډېره بده ده؛ اوس خو هرڅه ثبتېږي؛ عام خلک، دپوهنتونونو شاګردان او استاذان او بهرنو هېوادونو کې مېشت مسلمانان چې دا حالت ویني ملایانو ته به په کوم نظر ګوري؟

دا ټول کار موبایل خراب کړی؛ دځان ښودونکو خلکو هڅه دا وي چې دخپل ځان داسې صحنې ثبت او خلک ترې خبر شي چې پرې مشهور شي؛ موبایل پدې وخت کې دعلم لپاره ډېر لوی آفت دی؛ که څوک سم علم کول غواړي باید ترې ځان ډېر لرې وساتي.

دارالعلوم کراچۍ کې به زموږ استاذانو تل دا فرمایل چې که ځانو نه سم انسانان جوړول غواړئ نو باید د کوم متبع السنة او خداپرست مرشد سره خپل اصلاحي تړاو جوړکړئ او چې هغه څه وایې پرې عمل وکړئ!

الله تعالی دې ټولو ته دعمل کولو توفیق ورکړي.

## د دیني مدرسو په باب دمفتي تقي عثماني حفظه الله ارزښتناکه ارزونه او توصیه :

زما قدرمنو! نن سبا د ډېرو خلکو دا ذهنیت جوړ شوی، چې د دیني مدارسو له تعلیم نه علاوه، نورو ټولو تعلیمونو نه مقصد مال، او دولت ګټل دي او دا یو عالمي حقیقت ګرځېدلی.

او بل طرف ته دیني مدارسو کې دا ذهنیت ورکولی کیږي چې د علم حاصلولو نه مقصد دالله تعالی رضا حاصلول، او د دین اسلام نشر او اشاعت ده؛ نو اوس دې خبرې ته د دنیاوالو ذهن نه رسیږي، چې طالب او عالم به مال، او دولت سنګه ګټي، نو ځکه هغوي همیشه پدې کوشش کې دي چې د مدارسو په نصاب کې سنګه عصري تعلیم ور داخل کړي.

د مدرسو په نصاب کې دعصري علومو د داخلولو دوه هدفه کیداي شي: یو بلکل سهي ده، او بل بلکل غلط.

که په دیني نصاب کې دعصري علومو شاملول په دې معنی وي چې، علماء او طلباء د دنیاوالو په نظریاتو، سوچ او فکر ځان پوه کړي، او سبا په ښه طریقه د هغوی د اعتراضاتو جواب ورکړي، او د دین اسلام طرف ته دعوت ورکړي، نو دا فکر بلکل صحیح ده.

او که په دې معنی وي چې سبا د دې دنیاوي تعلیم په مټ بیا مونږ ځان حکومتي منصب اوچوکی ته ورسوو، نو دا فکر بیا بلکل غلط او غمونکی ده.

## د پند خبرې

که غواړئ د یو چا اخلاق معلوم کړئ، نو د غوسې حالت کې یې وکورئ.

که غواړئ د یو چا د شخصیت لوړتیا معلومه کړئ، نو هغه چاسره یې چلند وکوره چې بد یې ورسره کړي.

که غواړئ د یو چا د عقل پخوالی معلوم کړئ، نو هغه چاسره یې چلند وکوره چې د نظر سره یې مخالفت لري.



مرکه کوونکي ـ م احمدالله نظامي

# د مرحوم عالیقدر امیرالمؤمنین ملا محمد عمر مجاهد د ۸ تلین په مناسبت

## د ښاغلي مولوي عتیق الله عزیزي سره تاریخي مرکه

درنو قدرمنو لیدنکو اورېدونکو!

السلام علیکم ورحمة الله وبرکاته! دا چې تاسو په جریان کې یاست دوه نیمې لسیزې وړاندې په افغانستان کې د فساد، انارشیزم ملوک الطوائفي، او د قومندان سالاری او جنګ سالاري یو اوج او افغانان نور ددغه نارواوو ټوپک سالاریو ظلمونو څخه ترپوزې راغلي وو او نور یې د صبر او زغم کاسه ډکه وه او دې ته سترګې په لار و چې ددغو ناخوالو، مشکلاتو، دربدریو څخه به د نجات لـه پاره څوک راپورته شي چې نـور ددې ظلـم او استبداد تغـر ورټـول کړي او موږ ته نجات راکړي

اسلامي ارزښتونه مو خوندي شي د د جهاد او قربانیو ثمره په لاس راکړي زمونږ هیلې امیدونه راوټوکوي.

بیا هغه و چې متعال خدای ج د همدې مظلوم ملت له غېـرې یو داسې ځوان مرد قلنـدر مجاهـد امیرالمـؤمنین مـلا محمـد عمـر مجاهد رحمه الله په شکل یو داسې حرکت او تنظیم پیل وکړ چې د دغو ټولو دربدریو ناخوالو قومندان سالاریو او د شر او فساد ګلم یې په ډېره کمه موده کې ورټول کړ.

او د خلکو مقدسو ارمانونو او غوښتنو ته یې لبیک ووایه

بلآخره ملا صیب رحمه الله اته کاله وړانـدې پـه کـال ۱۴۳۶ هجری کې له فاني نړۍ څخه سترګې پټې کړې او یو لوی تاریخ او ستر ویاړ او عظیمه رهبري یې تر شا پرېښوده او دا چې اوس د لوی ملا صیب اتم تلین دی غواړو چې د هغه د شخصیت او کارنـامو، د هغه بصیرت او جرأت د هغه پیاوړی دریځ او کلک عـزم پـه اړه لـه هغه چا سره مرکه و لرو چې هغه د تېر امارت د واکمنـۍ پـر مهـال هم په مطبوعاتي ډګر کې یو ځلېدلی او نمایا مهم کـرادار اداکـړی ټول حالات یې تر سترګو تېر شوي او هرڅه یـې لـه نـږدې څـارلي، لوی ملا صیب رح یې له نېږدې لیدلی د خپلو سترګو لېدلې جـالبې خاطرې په ذهن کې لري او په دغه روان جهـادي بهیـر او مقاومـت کې هم پراخه ونډه لري چې هغه محترم الحـاج مولـوي عتیـق اللـه عزیزي صیب دی نو غواړو چې په دې اړه له ښاغلي عزیزي صـیب یوه لنډه مرکه او پوښتنې ولرو هیله ده چې تر پایه یـې راسره واوړئ او د ملا صیب د شخصیت او کارنامو په اړه کره او د سترګو لیـدلي مالومات چې محترم عزیزي صیب یې وړاندې کوي له هغې خوند واخلو او نوي مالومات تر لاسه کړو.

**۱ ـ محترم عزیزي صیب په پیل کې کـه د مرحـوم لوی ملاصیب په جهادي سیاسي ټولنیز ژوند په اړه کـه داسې مختصره رڼا واچوې لـوی مـلا صـیب خپـل ټـول ژوند څرنګه تېر کړ؟**

بسـم اللـه الـرحمن الـرحیم پـه پیـل کـې تاسـو او محترمـو اورېدونکو، کتونکـو تـه سـلامونه او احترامـات وړانـدې کـوم او د سـعادت، افتخـار ځـای دی چـې نـن د ددې امـت یـو لـوی او خواخـوږی محسـن د افغانسـتان د ویـاړمن تـاریخ د یـوه ځلانـده ستوري او د افغانستان اسـلامي امـارت او د طالبـانو د اسـلامي تحریک مؤسس مرحوم عالي قدر امیر المـؤمنین مـلا محمـد عمـر

مجاهد نوّرالله مرقده د وفات د اتم تلین په ویاړ بانـدې مـوږ تاسـې سره ټول شوي یو، مرکه لرو او تاسو دا مناسبه وبلله چـې زمـوږ یـو څو مـاتې ګـوډې خـبرې تاسـو ثبـت او درج کـړئ او اورېـدونکو، کتونکو ته یې وړاندې کړئ

محترمه د مرحوم ملا صیب په اړه زما له ډېره وخته دا ذهن کې تاوېدله چې کوم داسې یو لقب ورته وکاروو که څه هـم لـوی مـلا صیب رحمه الله وفات دی اوس دلته نه شته خو په ذهن کې مې دا خبره وه چې کوم عنوان ورکړو خو له نیکه مرغـه پـه دې وروسـتیو کې د افغانستان اسلامي امارت د مطبوعاتي ملګرو په بریالیو هڅـو باندې د لوی ملا صیب د وفات په اتم تلین پـه مناسـبت بانـدې یـو ډېر جامع ټولنیز کتاب د ثالث عمر په نامه باندې چاپ شو، نو کـه رېښتیا درته ووایم دغه عنوان او نوم راتـه ډېـر مناسـب ښـکاره شـو، ځکه چې ملا صیب مرحوم رحمـه اللـه کـوم ژونـد کـوم سیاسـت، کومه تګلاره او کوم موقف یې چې و هغه د اسلام د مقدس دین پـه اساس باندې ولاړ و د افغانستان په ملي ارزښتونو باندې ولاړ و، په هغه ملي مفاهیمو او منافعو باندې ولاړ و، یو اسلامي او ملي غرور یې درلوده د افغانستان په خلکو باندې درد مند و، د مظلوم ولس لـه آهونو فریادونو څخه آګاه و او دا ځکه چې مرحوم ملا صیب د تېـر جهاد یو نومیالی جهادي قومندان او یو لوی غازي هم تېر شـوی و، د هغه له زیاترو ملګـرو سره چـې زه کښېناسـتلی یـم او خـبرې مـو ورسره شوي د بېلګـې پـه ډول بـه یـې ووایـم د افغانسـتان اسـلامي امارت سیاسي مرستیال الحاج ملا عبدالغني برادر صیب او له هغـه نه مخکې شهید ملا عبید الله اخند چې دا د اسلامي امارت د دفـاع وزیر و او تر هغې راوروسته بیا د امریکایانو سره د جهـاد پـر مهـال شهید ملا عبید الله اخند او ملا برادر اخند د نایبینو په صـفت دنـده اجرا کوله، نو له دوی څخه مې اورېدلي چې په تېر جهاد کې کـوم چـې د روسـانو او کمونیسـتانو پـه خـلاف روان و، نـو دده کـوم شجاعت او کومه دلاوري، هغه قائدانـه صـلاحیتونه چـې پکـې و ، که د مجاهدینو له لوري به په روسانو کومـه حملـه کېدلـه او کـوم عملیات تر سره کېدل نو ملا صیب به په لـومړۍ کرښـه او لـومړي صف کې ولاړ و او د جنګ قومانده او رهبري به دده په لاس کې وه او زیاتره ملګري یې وایي چې په هغه وخت کې ملا صیب مرحوم د روسانو د ټانګونو، د هغوی د وسایطو او د کمونیستانو د کاروانونو له منځه وړلو کې د یوه ښکارزن په څېر مهم رول او کـردار درلـوده، همدغه وجه وه چـې مـلا صـیب مرحـوم رحمـه اللـه د روسـانو او کمونیستانو په خلاف جهاد کې څلور ځله زخمونه اخیستي چې په ورستي ځل یې یوه سترګه هم له لاسه ورکړه، نو ویـلای شـو چـې ملا صیب مرحوم رحمه الله د تېر جهاد یو ویـاړلی مجاهـد، غـازي جهادي قومندان و، نو د ملاصیب په اړه په مختصـــر ډول دا ویـلای شم چې ملا صیب د افغانستان تاریخ ته یو نوی رنګ ویـاړ افتخـار ور په برخه کړ. اسلامي امت ته یې د ویښتابه د رابیدارېدو یوه رحیه ورکړه او دا یې ثابته کړه چې څوک د الله ج لـه پـاره را اوچتیـږي او قرباني ورکوي نو الله ج یې همداسـې نـه پرېـږدي نـو همدغـه یـې علت و چې اللـه تعـالی دده پـه دغـه سـتر کـار چـې هغـه د فسـاد، انارشیزم، ملوک الطائفي د پاټک سالارۍ، د وحشتونو چـې کومـو په مقابل کې ده کـوم قیـام کـړی و او د نـورو مجربـو مجاهـدو پـه همکارۍ چې ده سره و او ټول مخلص خلک و، څه شهیدان شوي او څه ژوندي پاتي دي د هغوی په توسط بانـدې چـې دا یـو عظـیم کار یې شروع کړ الله تعالی یوه نیکه ثمره پرې مرتبه کړه افغانسـتان کې د امن او ثبات یوه فضا راغلـه څرنګـه چـې دې مخکـې یادونـه وکـړه د افغانسـتان پنځـه نـوي فیصـده خـاوره د امـن او ثبـات او د اسلامي حاکمیت تر وزرو لاندې پټه شوه اسلامي نظام حاکم شـو د افغانستان سرحدات خونـدي شـول افغانسـتان لـه تجزیـې کومـه طرحه او پلان چې جوړ شوی او په قومي ژبني مسائلو باندې چـې افغانان سره وېشل شوي د ملا صیب او د هغه د ملګرو د قربانیو پـه برکت سره دغو ټولو ناخوالو بد امنیو ته د پای ټکی کېښودل شو نو ویلای شو چې ملا صیب د اسلامي ویښـتابه داللـه ج پـه ځمکـه د اسلامي نظام حاکمیت ددې پېړۍ یو مجدد و.

**۲ــ پوښتنه: اروابښاد ملا صیب رحمه الله خـو پـه لومړیـو کې یو غیر مشهور جهـادي قومنـدان و څرنګـه یـې وکـولای شول چې یو تاریخ جوړونکی حرکت پیل او منسجم کړي په ډېره کمه موده کې یې نیـږدې ټـول افغانسـتان تـر خپلـې سلطې لاندې راوست او تر ټولو مهمه لا دا چې د افغانسـتان دیني او مذهبي قشر یې په ځان راټول او متفق کړ ستاسې په فکر د دغو مهمو کارنامو او لاسته راوړنو اصلي لامل څه و او کوم داسې قوي څواک ورسره و؟**



جواب: ما مخکې عرض وکړ چې تېر جهاد هم ملا صیب ډېر په پاکه مینه او سپیڅلې عقیده شروع کړی و په قندهار، روزګان، هلمند او شاو خوا ولایتونو کې چې په هغه وخت کې د روسانو په مقابل کې د مجاهدینو طالبانو علماؤ کومې جبهې وې په هغه کې یې نوم درلوده او په دې یې پېژانده چې دا یو پاک او سپیڅلی مجاهد ده د تواضع او ملنګۍ او د بردبارۍ د اخلاص یوه نمونه وه نو په هغه وخت کې چې دده کوم جهادي ملګري و او بیا وروسته له ده سره ملګري شول، نو هغوی ټولو د ملاصیب په دیانت د ملا صیب په تقوی د ملا صیب په عزم باندې کلک باوري ول د ملاصیب سره ډېر کلک قوي قوي ملګرو و د تېر جهاد، نو هغوی ټولو په دې باندې د تائید لاس کېښود چې ملا صیب ددې وړ دی چې د دغه حرکت او د دغه نظام سرپرستي وکړي.

او بله جالبه خبره به زه دا درته وکړمه چې ملا صیب سره به څوک کیناستل د ملا صیب ژوند به یې ولید او د هغه خبرې به یې واورېدې د هغه د عمل او وینا توازن به یې چې ولید، که به هر څوک و او له هر ډول تبلیغاتو سره راغلی و که به دوست و یا به دښمن و له دغه ځایه به یې ډېر نیک تأثرات له ځانه سره وړل، زه به یې یو څو ژوندي مثالونه ووایم چې استاد سیاف چې د افغانستان د تېر جهاد یو جهادي تنظیم مشر و یو ډېر خله ور سړی او د هغه د علمي شهرت او د حدیثو د استاذۍ خبرې خو یې هر چاته مالومې دي، هغه په دې ډېر ټینګار کاوه او ډېره خبرې به یې په خپلو تقاویمو کې کولې چې موږ د دغه حرکت او د دغه خوځښت او د دغو طالبانو په رابطه باندې مونږه شکوک شبهات لرو نو موږ دې ته انتظار کوو چې تر څو مو یو خپل قوي وفد نه وي لیږلی د خپلو پوهانو او خپلو علماؤ په توسط باندې، د دغو علماء له جملې څخه یو مشهور عالم و چې د اتحاد اسلامي د اجرایي شورا غړی و اوس وفات شوی مولوي رحیم الله زرمتی صیب نورالله مرقده نو هغه موږ ته دا کیسه کوله چې استاد سیاف موږه قندهار ته د یو وفد په شکل کې ولیږلو او دا سپارښتنه یې راته وکړه چې تاسو به له ملا صیب سره وینئ د هغه معاونین به وینئ د هغه شورا به وینئ او د طالبانو کړنې به وینئ او له خلکو نه به پوښتنې کوئ، که چېرته تاسو موږ ته مثبت تأثر راوړ او تاسو ورنه مطمئن شوی زما بلکل تاسو سره وعده ده چې زه به طالبانو سره یوځای کیږم نو کیسه یې کوله چې موږ قندهار ته لاړو او د اتحاد اسلامي د شورا نور برجسته مخور خلک هم راسره و کله ورسېدو دغه ټول مسائل مو داسې بند په بند باندې تعقیب کړل، ملا صیب سره مو مجلسونه وکړل، پوښتنې مو ځنې وکړې چې څنګه را پیدا شوئ چېرته او چا اکمال کړئ؟ تحریک مو ولې راپورته کړ ولس سره مو څه وکړل اوس ورسره څه کوئ اینده څه فکر لرئ او بیا دده د معاونینو د شورا له غړو سره مو ولیدل د دوی کردار مو وڅارو او بیا د طالبانو عملي کړنې مو ولیدې د شرعي نظام تطبیق مو ولیده نو موږ خو هلته ټول په دې باندې ډاډه شولو چې دا یو پاک سپیڅلی حرکت دی او ملا محمد عمر مجاهد رېښتیا چې یو سپیڅلی مجاهد ده، نو بیا چې کله راغلو استاد سیاف سره چې کیناستو نو موږ چې کوم تمثیل هغوی ته وړاندې کاوه ماته خپله ژړا راتله چې دا داسې ملنګان او سپیڅلي خلک و ګواکې تعبیر مې نه شوای کولای او دا اجرایې شورا تمامو غړو دا خبره په همدغه ډول ورته تشریح کړله البته چون دی تر هیبت او رعب لاندې راغی البته په سیاف کې دغه یو مرض د نفاق په زړه کې موجود و.

نو بیا یې دا خبره وکړه چې سهي ده تاسو خو تأثر ښه راوړی خو موږ به هم یو څه نورې پلټنې هم وکړو، نو پلټنې یې هغه وکړې چې بیا د اسلامي امارت په مقابل کې ودرېد

بله خبره به دا درته وکړم چې د افغانستان د علماؤ نه علاوه د پاکستان یو مشهور عالم دی شیخ حسن جان رحمه الله، په علمي لحاظ الله ج هغه ته یو بحر او ستغنا ورکړې وه یو فراست یې ورکړی و هغه به د چا صفت نه کاوه هغه خپله خبره کوي موږ د صدر مشرف دور کې یې طالبانو ته ولیږلو، دا هغه مرحله وه چې امریکایانو په افغانستان حمله کوله نو موږ ته یې داسې وویل چې تاسو لاړ شی طالبانو ته ووایئ چې له امریکا سره یوه سیاسي روغه

جوړه وکړئ یانې دا مانا چې دا د اسامه موضوع ورسره حل کړئ هغه وایي چې کله موږ لاړو او د پاکستان ځیني نور متبحر علماء هم موجود ول کله چې د ملا صیب په دربار کې کیناستو خبرې اترې مو سره پیل کړې نو کله چې موږ د ملاصیب خبرې واورېدې نو ته په خدای اعتبار وکړه چې موږ د ملاصیب دیوې خبرې د جواب هم نه و که څه هم موږ په علمي لحاظ ځان ته یو څه ویلې نو موږ دا توان لاره چې په خپل علمي ځواک ملاصیب ته جواب ورکړو او د هغه خبره ور رد کړو علاوه له دې چې کله مې د لوی ملا صیب کلک عزم ولید کله چې د ملاصیب دربار څخه را بهر شو نو ملګرو ته مې وویل چې ماته خو ددې سړي په ولایت کې د یوې ذرې اندازه شک هم نه شته، او زه دا وایم چې موږ سره ځومره علماء دي او دې سره نور هم را یو ځای کړې د لوی ملا صیب ایمان ته او دغه عزم ته نه شو رسېدلی، نو په ملا صیب مرحوم کې دغه ډول اثرات او کمالات و،

او یو بل مثال به یې درته ووایم چې د پاکستان یو مشهور عالم دی مولانا منظور مینګل صیب شاید تاسو یې خبرې اورېدلې وي، هغه په دې ورستیو کې ویل که څه هم دا د هغه الفاظ دي چې شیخ سلیم الله خان صیب نورالله مرقده دې کې شک نه شته چې یو لوی محدث او نومیالی عالم و، یو مؤلف و یو د قدر او منزلت وړ شخصیت و یانې دا زما په خوله نه شي راتللی البته د مولانا منظور مینګل حکایت کوم هغه وایي که چېرته ماته څوک ووایي چې د مولانا سلیم الله خان او د لوی ملاصیب مقایسه او منزله او رتبه یې یا تر منځ پرتله څه ډول کوې که څه هم مولانا مینګل د سلیم الله خان صیب شاګرد دی، نو د دې په جواب کې وایي چې زر سلیم الله خانه او یو ملا محمد عمر نه سره برابروم، خو هغه وجه څه وه داسې نه چې د ملاصیب یا ځواني ښه ځواني وه یا دنیا دار ډېر و یا دنیا کې په شاهانو باندې نازولی و خو خبره په دې کې وه چې مرحوم ملا صیب هغه کار وکړ چې هغه زر سلیم الله خانه یې نه شي کولای چې هغه د الله ج په ځمکه د الهي نظام حاکمیت و او بل دې ټولې مغرورې دنیا ته ویل و چې ته کومه خبره کوې هغه ناحقه ده هغه خبره درسره منم چې هغه حقه وي باطله خبره نه منم غلامي نه منم نو دغه جواب دغه استدلال دغه قوت د دنیا له هیڅ بادشاه سره نه و په کوم وخت کې چې بش دغه خبره وکړه چې یا به څوک له ماسره کیږي یا به د هغه په اصطلاح له تروریستانو سره کیږي، نو په سرزمین خدا کې د ملا محمد عمر مجاهد رحمه الله او د هغه د ملګرو بله اسره نه وه پرته دالله ج له قدرت نه نو څوک چې دغسې یو عزم لري دغه ډول یوه راسخه عقیده ولري او دغسې تأثر ولري دغسې اخلاق ولري دغسې دیانت ولري نو خود بخوده به دغسې خلک پرې راټولیږي هغه به قائد جوړیږي هغه به د امیرالمؤمنین په صفت باندې بیعتونه ورسره کیږي نو دا یوه طبعي خبره وه.

**۳ــ پوښتنه: په خپلو فیصلو او پرېکړو کې څومره جدي او قاطع و؟ ترکومه حده یې خپله پریکړه عملي کوله؟**

جواب: د ملاصیب لویه ځانګړتیا همدا وه چې هغه د دنیا د باطلو فیصلو او پرېکړو تر تاثیر لاندې نه راته ملا صیب په خپل مزاج باندې پښه ایښې وه، خپل مزاج یې د اسلام او شریعت تابع ګرځولی و نو دغه د امریکا په مقابل کې د اشغال پر وړاندې چې کومه مبارزه شروع شوه اساس یې کیښودل شو تاسو چې مقدمه کې ورته اشاره وکړه نو دغه که د ملا صیب پریکړه جدي نه وای ځکه ورستی پریکړه خو ملاصیب کوله ممکن ډېرو خلکو ملاصیب ته دا مشورې ورکړي وي چې ته له امریکا سره، ناټو سره، دا یو څلویښت ملکونو سره په کوم قدرت او په کوم ځواک مقابله کوې؟ او د خلکو په اصطلاح په لوی لاس دغه افغانستان د اور یوې بټۍ ته ور اچوې خو ملاصیب به همدا خبره کوله چې امریکا او متحدینو یې چې افغانستان باندې د یرغل اراده کړې دا هدف یې نه دی چې دلته شیخ اسامه دی یا دلته مجاهدین دي یا یې دلته پټنځایونه دي دا یې هدف نه دی دوی اصلا غواړي چې دلته داسې یو نظام چې هغه ددوی خبرې ته نه وایي او دوی خپلې پرېکړې په خپله کوي نو دغسې نظام باید په سرزمین خدا کې وجود ونه لري او باید ټول ددوی تر تسلط لاندې وي نو زیاتره وخت به چې ملا صیب ته وفدونه ورتلل ملاصیب به ورته ویل چې زه که سلځله هم د اسامه په موضوع باندې له هغوی سره خبرې وغواړم هغه له موږ سره نه کښېني نو د اسامه په موضوع باندې ملاصیب دنیا ته وویلې چې موږه حاضر یو چې په یوه اسلامي ملک کې دې ته یوه عادلانه محکمه جوړه شي تاسې هم خبره وکړئ چې ده حمله کړې دی به هم خپل دلایل وړاندې کړي چې ما نه ده کړې موږ به یې دې ته

اماده کړو چې دی دا خپل جرم ومني او یا وواییي چې ما دا کار نه دی کړی نو هغوی دې خبرې ته هم حاضر نه شول بیا په کابل کې شاوخوا دوه زره علماء راټول شول دوی دا خبره وکړه چې امریکا له افغانستان څخه د اشغال مخه اړوي نو موږ به ملاصیب او طالبانو ته ووایو چې اسامه تشویق کړي چې په خپله خوښه له افغانستان څخه ووځي خو موږ په هغه وخت کې هم واورېدل چې موږ هرو مرو په افغانستان یرغل کوو نو د امریکا یا دهغوی د متحدینو او غلامانو ددغه غرور په مقابل کې له شک پرته چې د ملاصیب په خپله پریکړه کې قاطعیت موجود و او علاوه له دې نه چې ملاصیب داسې هم نه و چې په ټولو پریکړو کې به ملاصیب خپل مزاج چلاوه، تاسو به اورېدلي وي چې کله ملا صیب ته د امیرالمؤمنین لقب ورکول کېده د افغانستان یو نیم زر علما قندهار ته ټول شوي وو نو هغوی ته ملا صیب په خپل خطاب کې دا وویل چې ګورئ زه یو طالب یم د هغوی په اصطلاح د کندیا، قطبي یا بدیع المیزان طالب یم داسې څه د کتابو نومونه یې ورته واخیستل نو موږ د شریعت په تطبیق باندې دومره نه یو وارده لکه تاسو علماء نو تاسې علماء زما مشاورین یئ تاسې به ما له کړو لارو رانیسئ او په ورځ د حشر باندې چې الله تعالی ج له ماڅخه پوښتنه کوله چې له تاڅخه دغه کار خراب شوی و زه به د تاسو علماءو ګریوانونه نیسم او ریښتیا هم همداسې وه چې کومه مشوره چې ملاصیب د علماؤ استاذانو او د نیکو خلکو اورېدله مثال به یې تاریخ کې هم څوک ثابت نه کړي.

**۴ ــ پوښتنه: ملامحمد عمر مجاهد نورالله مرقده خو یوازې و او په یوازې ځان خو دغه ټولې چارې په بشپړ ډول عملي کول خو ناشونې دي څرنګه یې ټولې چارې ترسره کولې خامخا به یې ترڅنګ داسې مهم ملګري او مشاورین درلودل چې نوموړي سره یې کلیدي ملګرتیا او مرسته وکړه او ملا صاحب یې دبري تر ساحله ورساوه؟**

جواب : دې کې شک نه شته چې ملاصیب د تېر جهاد د وخت ډېر غښتلي مجاهدین ملګري درلودل او د تېر جهاد هغه ملګري چې هغه ټول نخبه ګان و ټول داسې اشخاص و لکه ملاصیب یا د ملاصیب په څېر داسې خلک و چې زیاتره مونږه لېدلي وو او هر یو به دې چې لیده نو د ملاصیب ددغه ارمانونو او د ملاصیب ددغه عهد او پیمان مینه به دې پرې ماتېدله داسې د مثال په توګه به یو څو ووایم، مرحوم ملا محمد رباني اخند چې هغه په حاجي معاون صیب باندې مشهور و چې په تېر جهاد کې د مولوي محمد یونس خالص رحمه الله تنظیم پورې مربوطه یوه جبهه یې زابل کې او قندهار کې یې هم جبهې درلودلې، دهغې مشهورې جبهې معاون و چې هغه هم ټول طالبان او عالمان په کې وو نو حاجي معاون صیب په تقوای دیانت فراست کې ساری نه درلوده، زه به خپله د حاجي معاون صیب یوه خاطره درته ووایم کله چې طالبانو د کابل چهاراسیاب ولسوالۍ ونیوله نو یو څه وخت د کابل ادارې سره د اوربند خبرې کېدلې نو زه او یو څه نور ملګري دغه سعادت لرو چې د هغه د خدمت له پاره مؤظف و نو د لوګر یوه سیمه وه کنجک یې بولي شفاخانه وه موږ به هلته پهره کوله ته دا باور وکړه چې کوم ځل به ما را وکتل د شپې حاجي معاون صیب به په تهجد یا په تلاوت باندې مشغول، نو د حاجي معاون صیب ټول کردار کړه وړه ذاتیات هر څه یې په شریعت پورې تړلي و، نو دغسې خلک له ملاصیب سره موجود و حاجي ملا محمد اخند و چې نظامی قومندان و چې ډېر یو غښتلی سړی و، شهید ملا بورجان اخند و شهید ملا مشر اخند و شهید مولوي احسان الله احسان صیب و د دوه و جهادونو نومیالی مشر-جهادي قومندان مولوي جلال الدین حقاني رحمه الله، شهید امیرالمؤمنین ملا اختر محمد منصور رحمه الله و، شهید ملا عبیدالله اخند رحمه الله شهید مولوي اختر محمد عثماني رحمه الله و شهید قاري احمدالله صیب و او نور ډېر داسې غښتلي مشران ورسره و

په ژوندیو کې الحمدلله چې اوس هم وجود لري لکه د بېلګې په ډول یې یادولای شو لکه ملا برادر اخند حفظه الله ملا محمد حسن اخند او د وزیرانو شورا مرستیال مولوي عبدالکبیر صیب او لوی محقق عالم مولوي نور محمد ثاقب صیب ملا امیر خان متقي صیب، نو دغسې په سلګونو په زرګونو ملګرې ورسره و چې له ده سره یې همکاري کوله او هغوی ته یې مسئولیتونه ورکړي مشورې ورکولې نوخامخاملاصیب خو په دغه کار کې یوازې نه و.

**۵ ــ پوښتنه: دا چې عام خلک او نور نړیوال په دې اند دي چې ملا صیب یوازې یو نظامي سړی وو او یوازې په جنګ یې باور درلود، په نورو ملکي چارو کې لکه د ښیا رغونې چارې،**

**اقتصادي، علمي سياسي او پرمختيايي چارو ته يې ډېر ارزښت نه ورکاوه په دې اړه ستاسو مالومات څه دي ؟**

جواب : نه دا خبره حقيقت نه لري لکه څرنگه چې تا مخکې يادونه وکړه موږه مخکې هم په تېر امارت کې مطبوعاتو کې وخت تېر کړی او دغه ډول تولو مسائلو ته به متوجه و دغـه د تـاپي پـروژه چې اوس يې خلک بولي له ترکمستان څخه د گازو يوې ليکـې پـه شکل باندې چې د دې پروژه دا مشـهوره چـې د اسـلامي امـارت د طالبانو تحريک پر مهال ددې اساس کېښودل شوی و په دې کـې د ملا صيب خاصه دلچسپي وه هغه ويل چې د افغانسـتان خلـک پـه دې کې مصروفه شي او د افغانستان خلکو ته د ژوند ذرايـع برابـرې شي د افغانستان خلک يوه مشغله پيدا کړي افغانستان ته عوائد پيدا شي نو دا د ملا صيب په موافقه باندې دا کـار سرتـه رسـېده پـه دې دوه کمپنۍ يونو کال او بريډاس په نامه باندې يـوه امريکـايي وه او يوه بريډاس ارجنټا سره يې تعلق درلوده چې سعودي عربـو هـم پـه کې شرکت درلوده نو دملا صيب ډېـره دلچسـپي دا وه ديکـې چـې دغه ليکه له افغانستان څخه تيره شي بيـا پاکسـتان او هندوسـتان او نورې نړۍ ته نو په دې بابت به يې بار بار وفدونه ليږل د هغه وخت د افغانسـتان خارجـه وزارت مسـئولين او د کـانونو صـنائعو کـوم مسئولين و په دې اړه يې ډېر سفرونه کړي کتابونـه هـم پـرې ليکـل شوي دي زه به يو څو مثالونه درته وړاندې کړم چون پـه افغانسـتان کې چې کله طالبان حاکم شول دغه نظام په صفر حالت کـې و لـه صفر څخه يې کارونه شروع کړل ته دا باور وکړه چې موږ به کله يو ولايت ته لاړو او هلته به مو هغه شعبې فعالولې نو په دېوالونو کـې يـې هغـه واړه لينونـه هـم دې شر او فسـاد نـه و پريښـي دروازې او کړکيۍ، تعميرونه او سيخان خو يې څـه کـوې نـو طالبـان پـه دغـه وخت کې په افغانستان واکمنان شول نو له دغه حالت څخـه د بيـا رغونې کارونه پيل کړل د افغانستان سړکونه دومره کندې کنـدې او ويجاړ ول د کندهار او کابل په لاره به چې څوک تلل موټر به پکـې ورکېده جلال آباد طورخم او کابل او نور دغه سړکونه يو هم روغ نه و پـاتې نـو د افغانسـتان د هغـه وخـت د وزيرانـو شـورا اقتصـادي مرستيال مولوي عبدالکبير صيب ماتـه خـبره کولـه دغـه راز د هغـه مهال د فوائد عامې مولوي سعدالدين صيب هغه دا خبره کوله چې موږ ملاصيب ته ورغلو او د ځينو اقتصادي پروژو يادونه مو ورسره وکړه ملاصيب دومره دلچسپي په دغه کار کې وښودله دا يې وويـل چې تاسو دغه کار کله عملي شروع کوئ؟ ماته يـې د عمـل خـبره کوئ دا خبرې ماته مه کوئ چې دا دومره مراحل لري داسـې يـا بـه هغسې کېږي د عمل خبره راته کوئ او په ما هم کار واچوئ زه څه کولای شم؟ که څه اقتصادي خبره يا د پيسـو خـبره وي نـو زه بـه د خپلو ظروفو او شرايطو ته په کتو امکانات درتـه برابـر کـړم، او بلـه خبره مولوي سعدالدين صيب دا کوله چې زياتره وخت به داسـې و چې موږ دغه د کابل او کندهار سړک شروع کړی و او ها خواتـه د کندهار اوهرات داغگيري سړکونو باندې مو کارونه شرع کړي و د ملا صيب ته دا د بيا رغونې او وطن د ابادۍ کـارونو دومـره زيـات خوند ورکاو چې خپله به يوه دوه ورځې بعد به ورته راته او هلته بـه يې له انجينرانـو او ملگـرو پوښـتنې کـولې کلـه کلـه بـه مـوږ نـه و ملاصيب به راغلی و او پوښتنې به يې کولې چې دوه يا درې ورځې بعد به دغه سړک کوم ځای ته رسېدلی وي؟ دا ټـول هغـه څـه دي چې د ملاصيب دغه کارو سره دلچسپي او محبت په ډاگه کوي.

مولوي صيب عبدالکبير چې د وزيرانو شورا معاون و ماته يې يوه ورځ دا خبره کوله چې زه يوه ورځ ورغلـم او ملاصـيب تـه مـې وويل چې دغه د کابل او جلال آباد سړک ډېر خراب ده که ددې لـه پاره څه ترتيب وکړو نو ملاصيب راته وويل چې څه کولای شو ماته ووايه وای ما ورته وويل چې نور خو موږ سره نه دنيا کومـک کـوي او نه په خزانې کې دومره پيسې موږ ته پريښې چې کـار پـرې پيـل کړو نه کوم مؤسسات شته او نه هم نور کوم دا عايدات لرو نـو پـه خپلو ظروفو شرايطو به يې کوو نو ملا صيب راتـه کـړل چـې څـه ظروف او شرايط؟ وای ما ورته کړل چې دغه د حق العبور په پيسـو باندې موږ دا کار شروع کړو څکه د اسلامي امارت پـه مهـال خـو ډېر سپڅلي صفا ستره خلک و هلته خو غلا او فساد اختلاس نـه و نو په دې باندې متيقن و چې همدغه خپل ظروف او شرايط مو څـه دې کار به پـرې شروع کـړو نـو ملاصـيب راتـه وويـل چـې بلکـل پيشنهاد وليکه نو ما داسې پيشنهاد وليکه چې دغه د مشرقي ولايتونه کنړ، لغمان ننگرهار چې کوم حق العبورونه اخيستل کيـږي پـه دې به موږ داسې نوبت وار شکل باندې دغه سړکونه جوړوو مثلا اول د کابل او جلال اباد سړک بيا د جلال اباد اسعد اباد د کنړ سړک بيا تر هغې وروسته د جلال اباد ښار او لغمان سړکونه به پـرې جـوړ کـړو

نو هغه وخت کې د ملا صیب یو سکرتر و هغه وویل چې دا خو نورو ولایتونو ته ډېر په ځنډ باندې نمبر ورسیږي دا خو مشکله ده وای هغوی ورته وویل چې ملا فلانکی اخند په کې خنډ او ځنډ مه اچوه احکام ورته ولیکه چې کار شروع شي نور به موږ ته څوک دا سرکونه جوړوي؟ نو ملاصیب دغه ټولو کارونو ته ډېره دلچسپي درلوده، ډېر اهمیت یې ورکاوه حتی د فوائد عامې وزیر راته وویل چې هلمند کې یو لوی پل و چې غالبا د خواجه بورا په نوم که څه و، هغه ته یې د کندهار د شورا یو مهم غړی ورته مؤظف کړ چې دغه کار به ته انجام ته رسوې دغه پل به ته جوړوې چې خلکو ته اسانتیاوې رامنځ ته شي، نو ملاصیب مرحوم رحمه الله دغو ټولو مهمو مسائلو سره ډېره ښه علاقه لرله خو متأسفانه مشکلات دا وو چې دنیا نه پرېښودل او مرستې یې ورسره نه کولې.

**۶ ــ پوښتنه: دا چې د مرحوم لوی ملا صیب رح په موجود ګی کې دده د قاطع او پیاوړي دریځ له امله د امارت او هیواد رهبري ډېره کامیابه او منسجمه وه سوال دا پیدا کیږي چې دهغه په غیاب او رو پوشي کې یې د اشغال په وړاندې جهاد او مقاومت په احسن ډول رهبري کړ آن تر دې چې دوه کاله یې له وفات ورسته هم نوې دوره له کوم نقص او تزلزل سره مخ نشوه تاسې یې کوم رمز او مهم وجوهات ګڼئ؟**

جواب: ما مخکې هم عرض وکړ چې د اسلامي امارت په لیکو کې په قیادت کې په اساس کې داسې خلک و چې دا ډېر نیک باخدا، له خدای څخه وېرېدونکي سره یو ځای شوي و او موجود و او دوی چې ملا صیب سره یوځای شوي و یا یې د دغه حرکت اساس کیښوده نو په یو سپیڅلي هدف په یوه مرام او ارمان سره یو ځای شوي وو داسې کلک عزم یې ورسره کړی و او دا یې ورته ویلي و چې د مرګ وروستۍ سلګۍ پورې به موږ له تاسې سره یو.

نو په دې کې شک نه شته چې د ملا صیب له وفاته او غیابته وروسته هر چا دا اټکل کاوه چې دغه نظام او حکومت به پاشل کیږي همدا وجه وه کنه چې زه به درته یو مثال ووایم بلکې یو مالومات به درکړم؛ کله چې افغانستان باندې امریکایانو تېری وکړ اول ځل باندې دا د افغانستان ټول هوایي میدانونه نه وو؟ دلته دا رادارونه طیارې او وسائط یې وویشتل، په دویم قدم کې یې د ملاصیب کور وویشت له نیکه مرغه ملاصیب خو بیا په دغه کور کې نه و بل ځای کې و او دا خپل ماشومان هم ورسره و په موټرو کې به ورسره و ملاصیب چېرته ودرېد نو په دغه وخت کې بل توغندی راغی د ملا صیب له څنګه په بل موټر ولګېده، دی او فامیل الله تعالی وژغورل له هغه ځخه ورسته ملاصیب پوه شو چې زه تعقیب یم له دغه ځایه یې خپل ماشومان یو جومات ته بوتلل او ملاصیب دغه زخمیان چې په یاد توغندي ولګېدل په خپله یې کندهار ته د تداوې له پاره یوړل ځکه څوک نه و هغه مهال بیا ملا صیب راغی او خپل ماشومان یې له جومات څخه وویستل یو څو لحظې وروسته دغه جومات هم امریکایانو بمبار کړ، نو له دې دا مالومېدله چې مکارې دنیا او نورې نړۍ دا فکر کاوه چې ملا صیب نه وي نوغه نظام به خدای ناکرده پاشلی او له منځه تللی وي، خو له دې نه و خبر چې دلته د ملاصیب هر ملګری ملا محمد عمر مجاهد دی او د ملاصیب د اهدافو ممثل دی د هغه د عزم او دریځ پیروانان دي نو دغه اوس موجوده اسلامي امارت چې دی د امریکا په مقابل کې کوم جهادي پوځي نظامي او سیاسي بریاوې لاس ته راځي او د افغانستان اسلامي امارت سره یې د اشغال د خاتمې ددوحې تړون لاسلیک کړ او له افغانستان څخه یې د ځواکونه ویستلو پرېکړه وکړه او ماته یې ومنله او د خپل شکست سند یې اسلامي امارت ته ورکړ نو اوس خو ملا صیب نه شته کنه؛

خو چون دغه اساس ډېر روغ اساس ده ډېر په اخلاص کېښودل شوی دی او د مرحوم ملاصیب هغه خاصې دعاګانې چې دغیابت پر وخت یې دغه تحریک او نظام ته یې کړې الله تعالی ته به هغه قبولې شوي وي او کومې هغه پاکې وینې چې تویې شوي دي، کومو فدایانو چې په دې کې سربښندنې کړي دي نو دغه هرڅه او دعاګانې خو هدر نه ځي او زه دا دعوه لرم چې دغه نظام او دغه حرکت که دنیا هر څومره دسیسې ورته جوړې کړي په دې خوشباورۍ کې دې دوی نه ځي چې په دې نظام کې دا زمونږه سړی دی او دا د هغوی سړی ده، دا نرم دیځی ده او دا سخت دریځی ده طالبان ټول معتدل دي لله الحمد چې اساس پا ایښودل شوی و، قائد مخلص و، دعاګانې الله ج ته منظورې وې لښکر صفا ستره ده او صفوف یې صفا دي نو دا به الله تعالی لکه څرنګه

چې د هغه په موجودګۍ کې پیاوړی، منظم او بریالی ساتلی همدغسې به بریالی روان وي ان شاءالله.

**۷ ـ پوښتنه: له ولس سره د لوی ملا صیب تعامل او خواخوږي څومره او څه ډول وه؟**

جواب: د اسلامي امارت یو نومیالی مشر دی مولوي امیر خان متقي صیب خبره کوله چې یو وخت موږ له ملاصیب سره په یو مجلس کې ناست و نور خلک هم راغلي و نو په دې کې یو کس و خبره یې وکړه چې غالبا زابل کې یې د کوم پاټک یا څنځیر یادونه وکړه که هلمند یې یاد کړ چې ددغه ځای مسئولین عام خلک زهیروي زوروي یې، مشکلات ورته جوړوي، نو ده دغه مهال دغه خبره ډېره په جذبه وکړه بیا دغه موضوع خلاصه شوه مجلس بل خوا لاړ کله چې مجلس ختم شو نو موږ خو دا فکر نه کاوه چې ملاصیب ته به دا خبره یاده وي ځکه منځ کې یې نورې خبرې راغلې نو کله چې مجلس ختم شو خلک سره خواره شول، نو ملاصیب هماغه سړي ته ورغږ کړ چې فلانکی اخند راځه چې ځو! یاد سړي ورته وویل چېرته ځو، ملاصیب ورته وویل چې تا ویل کنه دلته یو پاټک ده خلک زوروي مشکلات ورته جوړوي وای موږ ډېر ورته وویل چې بیا به شي اوس به نه ځو نو ملاصیب راته وویل چې تا خبره راورسوله اوس زمونږ مسئولیت جوړ شو چې د دغه خلکو پوښتنه به خامخا کوو ځکه زموږ مقصد او مرام همدغه ده چې د همدغه وطن خلکو ته اسانتیاوې برابرول او دوی ته امن راوستل دي نو ملاصیب په خپله ورغی او هغه خلک یې پیدا کړل او رایې وستل او بله خبره به دا درته وکړم چې ملاصیب را پورته شوی و انګېزه یې همدغه وه چې ملاصیب خپله کیسه کوي چې ما دغه حرکت او نظام شروع کړ د دغو ظلمونو او ناروا په خلاف و زه به چې په کوم سرک یا ډمبر باندې تېرېدم مدرسې ته به تلم نو په لارو کې مې چې کوم فجائع لیدلي و له عام ولس سره عامو خلکو سره چې زوروول کېدل ژوندي خلک به یې وژلي و په لاره کې به یې نیغ درولي و له نارینه هلکانو سره به نکاح کېدلې خلکو څخه به په وچ زور پیسې اخیستل کېدلې ټول وطن ټوپکسالاري نیولې وه، کابل په څلورو بادشاهیو ویشل شوی و د هرچا ځان ځان ته بادشاهي وه نو ملا صیب خو راپورته شوی د همدغه ولس په درد او غم و.

**۸ ـ پوښتنه: مرحوم ملا صیب چې د ټولې کفري او پرمختللې نړۍ او په هر ډول عصري وسله سمبالو قوتونو په مقابل کې په خالي لاس مقابلې ته راودانګل ستاسې په اند ملاصاحب په خپل دغه عزم کې کامیاب شو؟**

جواب: بلکل کامیاب شو د الله ج په فضل او نصرت سره ملاصیب هغه مهال هم امریکا او نورې مغرورې نړۍ ته دا وویل چې تاسو د افغانستان د هضمولو د اشغال کوشش مه کوئ دغه کار به مو بیا پښېمانه کړي بیا به نادمین یئ او یوه خبره به یې دا هم کوله چې اوس موږ درته وایو چې موږ خبرو ته اماده یو غواړو چې د افغانستان کشاله او موضوع د خبرو له لارې حل کړو، خو داسې وخت به راشي چې تاسې به بیا وایئ چې موږ خبرو ته تیار یو خو موږ به بیا نه یو تیار نو الله تعالی د ملاصیب په دغه عقیده او عزم کې په دغه کلک دریځ کې برکتونه کېښودل اثرات یې کېښودل امریکایان دلته له ماتې سره مخ شول نه یوازې دا چې په ماته یې موږ تبصره وکړو بلکې یو څوک چې تاته د ماتې سند په لاس کې درکوي چې زه نور له افغانستان څخه وځمه ما سره د روغې جوړې لاره ونیسه امریکا په تاریخ کې تر اوسه چاته د ماتې سند نه دی ورکړی، په تېر جهاد کې د روسانو په وخت کې نو امریکایان او روسان چې کله د مجاهدینو د کامیابۍ مرحله راورسېده نو دوی دواړه د خیر په غونډۍ کیناستل نو دوی دغه سند روسانو هم افغانانو ته نه دی ورکړی چې ویلي یې وای مونږه دلته

ماتې وخوړه او تاسو سره روغه کوو بلکې تاسو او د کابل رژيم سره کېنئ په خپلو کې سره روغه وکړئ نو هغه وخت هم مجاهدينو روسانو ته وويل چې نه د کابل رژيم باداران خو تاسو يئ د هغوی واک خو ستاسو په لاس کې ده هغه ستاسو غلامان دي موږه څرنګه هغوی سره کېنېنو؟

نو اوس هم اسلامي امارت امريکايان دې ته اړ کړل چې ته به دا منې چې تا دلته يرغل کړی او دغه خلک تا دلته په طيارو کې راوستي دا نظام تا ورته جوړ کړی اول ته راغلی يې بيا دې دغه خلک طيارو کې راوستي څوک دې بادشايان کړي څوک دې وزيران کړي څوک دې اجرايه رئيس کړی څوک دې سفير کړی څوک دې والي کړی دا تا کړي دا خاک خو مخکې نه و، نو ملا صيب په دغه عزم کې کامياب شو الله تعالی امريکايان او د دوی حواريين او ملګري غلامان يې مات او شکست خورده کړل او بله دا خبره ملاصيب کړې وه چې افغانان به ستاسو په خلاف ټينګه مبارزه وکړي او جهاد به وکړي نو افغانانو په واقعي معنا باندې د اسلامي امارت ملا وتړله د افغانستان نارينه او ښځينه و سپينږيرو او ماشومانو اسلامي امارت سره د سر په قيمت چې د دوی به د ټول کور له منځه تلو ويره وه خو د مجاهد ساتنه يې وکړه شپې يې ورکولې ډوډۍ يې ورکوله لار يې ورښودله نو ملاصيب په دغه خبره چې افغانان به ستاسو پر وړاندې جهاد پيل کړي او راپورته به شي هم افغانان کامياب شول او هم ملاصيب کامياب شو او بل چې دغه اوسنی نظام چې کوم چليږي د اسلامي امارت او په سياسي ميدان کې تر پخوا ډېر غښتلی او پياوړی ډېر منلی او په پوځي کې هم ډېر غښتلی او منلی دی ځکه دلته عملا مقابله وشوه امريکا ناتو، يوځلويښت هيوادونه دا ټول راغلل دلته خو يې له طالبان سره څه د ورزش لوبه نه کوله دلته يې هغه وسلې وکارولې چې نورې يې نه درلودې يوازې اتم يې استعمال نه کړ، دلته چې کوم کار وشو کوم نظام دلته موجود ده کوم پرمختګ وشو هغه که په سياسي برخه کې ده که نظامي کې ده، که فرهنګي کې ده، که علمي ميدان کې ده چې په کوم کامياب شکل وجود لري نو دا ټول د ملا صيب کاميابي ده.

**۹ پوښتنه: محترم عزيزي صيب دا چې اوس لوی ملا صيب وفات دی او ښاغلی ارجمند مولوي صاحب محمد يعقوب مجاهد حفظه الله د اسلامي امارت د مرستيال په توګه مقام او حيثيت لري تاسو به له نيږدې مولوي صاحب هم ليدلی وي څومره د خپل ميړني والد ګرامي په نقش قدم روان دی او څومره اثرات يې په کې دي؟**

جواب: مولوي صيب ما له نږدې ليدلی او له نورو مشرانو څخه مې د هغه اړوند مالومات کړي مولوي صيب کې د ملاصيب ځينې ځانګړتياوې شته چې يو په هغه کې خوشطبعي، ترحم، سخاوت او په خبر کې قاطعيت او تواضع نو دغه کړنې چې کوم امېر کې موجودې وي او بل چې په دغه څو کلونو کې دوی دغه اداره پر مخ روانه کړې ده نو د اسلامي امارت خو ډېر نوميالي او ورزيده مشران دي ورسره کيني ولاړيږي نو هغوی ټول وايي چې موږ کومه خبره يا کومه موضوع ورته وړاندې کړې ده نو مولوي صيب موږ ته داسې قناعت بخشونکی جواب موږ ته راکړی چې موږ ډېرې مطمئن يو نو دوی ټول وايي چې موږ پوره مطمئن يو دغه کومه عهده او دنده چې ورته ورسپارل شوې ده دا په ډېره احسنه او ډېره په ښه توګه ترسره کوي له مجاهدينو سره مينه لري له ولس سره مينه لري او په خاص ډول دا ملګري زياتره وايي چې د مولوي صيب له مجاهدينو وروسته چې په ولس باندې څومره خوا بديږي ساري يې په ډېرو مشرانو کې نشته.

**۱۰ـ پوښتنه: داسې ويل کيږي چې لوی ملاصيب د اسلامي امارت رژيم له سقوط وروسته خپل اولادونه بچيان بيا آن تر مرګه ونه ليدل او دغه حالت خو يقينا خورا دروند او له زغم څخه وتلی دی څرنګه يې دغه وخت تېر کړ؟ دا خبره حقيقت لري؟**

جواب: هو دا خبره ريښتيا ده ما مخکې هم وويل چې امريکايانو او د هغوی ائتلافيانو جاسوسانو او شيطانانو غوښتل چې ملاصيب ته صدمه ورسوي د ملاصيب کورنۍ پيدا کړي او د کورنۍ له لارې څخه ملاصيب پيدا کړي نو ملاصيب د دغو امنيتي ستونزو له کبله به غالبا مناسبه بللې وي چې له خپل فاميل څخه لېرې واوسي خو بيا هم ستا په خبره چې دا خو ډېره سخته وي محبت وي د اولاد نو زه بيا خپله چې د ملاصيب مرحوم هغه عزم ته ګورم او د هغه دريځ ته ګورم غرور ته يې ګورم شاهد هغه دا فکر کړي وي او ان شاءالله چې دا به ريښتيا هم وي چې دغه نور خلک

له خپل فامیل او بچیانو څخه لېرې دي څوک په ګوانتنامو کې پراته دي څوک په باګرام کې پراته دي څوک د قنـدهار پـه جیلونـو کـې پراته دي څوک د بحر په جزیرو کې پراته دي څوک د نورو ګاونډیو هیوادونو په ځورونکو زندانونو کې د اسارت شپې ورځې سبا کوي آیا هغوی خپل فامیل خپـل مـور پـلار او اولاد نـه لـري؟ نـو شـاید ملاصیب همدا فکر کړی وي او بله یوه خبره به دا درته واضحه کړم چې ملاصیب په ټول تاریخ کې یو ځل ګاونډي هیواد پاکستان تـه سفر کړی چې هغه هم دده ستر ګه شهیده شـوې وه او د تـداوي لـه پاره تللی و او نه هم دا د اسلامي امارت د واکمنۍ پرمهال تللـی و، که څه هم د پاکستان له خوا په کراتو مراتو له ملاصیب څخه د یـاد هیواد سفر غوښتنه شوې خو ملاصیب یې غوښتنه نه ده منلې او نه هم په دغه وروستیو وختونو کې چې ده ته کوم تکلیف او مریـضي ورته لرېـدلې وه یـا هغـه پـه ظـاهري اسبابو ددې وړ وه چـې ددې تداوي وشي او ددې ایجاب یې کاوه چې باید خارج ته سفر وکړي خو ملاصیب نه دی تللی ده به ویل چې د نورو افغانانو دلته تداوي او د مرضونو علاج کیږي خو زمونږ دې هم دلته تـداوي وشي او دا ملاصیب یو بل افتخار هم و چې نه یې اولاد ولیـده او نـه یـې کـوم ګاونډي هیواد ته سفر وکړ، ویل کیږي چې یو ځل یـې د سـټلایټ ټلیفون له لارې یې له خپل ورور او خپل فرزند ارجمنـد مشر- زوی مولوي یعقوب سره خبرې کړي دي نورې خبرې هم نه دی شوې.

**۱۱ ـــ محتـرم عزیـزي صیب پـه پـای کـې کـه راتـه وواياست چې په خپلو سترګو مو لوی ملا صیب څـو ځلـې لیدلی؟ او که کومه جالبه خـاطره یـې لـرئ چـې پـه خپلـو سترګو مو لیدلې وي لـه لیـدونکو او اورېـدونکو سـره یـې شریکه کړئ؟**

جواب: الحمدلله ملاصیب څلـور ځلـه مالیـدلی، یـو ځـل قندهار ته د لوګر د اطلاعاتو او کلتور د مسئول په توګه زه تللـی وم د قندهار په مېلمستون کې د علماءو یـو وفـد و مـلا صیب ورسره ناست و،

دوهم ځل چې د کابل چهارسیاب ولسوالۍ نیول شوې وه او کابل لا نه و نیول شوی لـوګر تـه ملاصیـب دوه ځلـه راغـی ددغـو خطونو مشرانو سره یې مشوره کوله چې کابل مـوږ څنګـه ونیسـو؟ هلته مې هم لیدلی خوشبختانه له ملاصیب سره مو په یوه موټر کې یوځای تر غزنی پورې سفر هم وکړ او بیا قندهار ته.

او بل ځل مو له هغه نه مخکې چې د قنـدهار د محـاکمو لـه پاره یې له ټول افغانستان څخه درې درې تنه علماء کرام ورغوښتي و نو د لوګر څخه د علماؤ د خدمت په وفد کې زه هم وم نـو هلتـه هم ما ملا صیب او حاجي معاون صیب او دا نـور ځینـې ملګـري ولیدل، مرکه هم اورېدلې او نوره به یې پای ته رسوو، یو جریان بـه له تاسو او ملګرو سره شریک کړم ما په تېر امارت کې پـه ننګرهـار ولایت کې د اطلاعاتو او کلتور ریاست کې دنده تـر سره کولـه نـو هلته بمبار شروع و امریکایانو ډېر سخت بمبار کاوه نـو دغـه عـام خلک چې و له دولتي ځایونو څخه ټول وتـلي و او د سرشـاهي پـه نوم یو کیمپ و هلته ټول میشت شوي و د بمبار له وېرې نه نو بیـا د بي بي سي یو خبریال چې غالبا د سعادت په نامه و دا راغلـی و نـو موږه هم ورسره ولاړو خو زه ورته ډېر متوجه نه شوم لـږ لېـرې ولاړ وم نو دغه خبریال د بی بی سی پښتو سرویس خبریال و لـه خلکـو یې پوښتنې کولې چا بـه څـه او چـا بـه څـه ورتـه ویلـې خـو یـوې ماشومې څخه یې پوښتنه وکړه چې دلته امریکایـان بمبـار کـوي او غواړي دلته راشي په اړه یې څه وایې؟ نو ماشومې څه ښـېرا وکـړې چې امریکایان دې خدای تباه کړي خدای دې رسـوا کـړي هغـوی بمونه اچوي په موږ باندې موږ ښېرا ورته کوو تقریبا چې د اوو اتـو کالو ماشومه وه بیا هغه خبریال ورتـه ووېـل چې امریکایـان وایـي اسامه موږ ته تسلیم کړئ کنه او چې اسامه موږ ته تسلیم کـړئ نـو دغه موضوع خو نور حل کیږي بمبار به نه کیږي نو هغه ماشـومې ورته وویلي چې نه ولې هغه خو مسلمان ده ولې یې کـافرانو تـه پـه لاس ورکړو؟ وای خو بمونه دربانـدې اوري ماشـومې ورتـه وویـل ودې اوري، دغه مرکه بیا له بی بی سي څخه نشر شـوه او پـه هاغـه وخت کې یې موږ ته هم چنـدان تفـاوت نـه درلـوده خـو مـال څـه خبرې یې وکړې دا مرکه بیا مرحوم ملاصیب اورېدلې وه له بـی بـی سی څخه سبا ته لـه مخـابرې لارې ننګرهـار تـه حـال رالېږلـی و د وزیرانو د شورا مرستیال مولوي عبدالکبیر صیب چې د جـلال آبـاد والي هم خبر یې ورته رالېږلی و چې دغې ماشومې دا خبرې له بـی بی سی سره په مرکه کې کړي دي دا ماشومه پیدا کړه او زما له خـوا نه ورته یولک روپۍ انعام هم ورکړه نـو چـې کلـه دا خـبره مـنځ تـه

راغله موږ هم ورته متحير شو اوس به دا څرنګه پيدا کوو؟ نو دلته چې دا کوم کسان نېږدې و دا مو هم له ځانه سره واخيستل او د سرشاهي کيمپ ته لاړو هلته مو پوښتنې پيل کړې چې دلته پرون يوې ماشومې مرکه کړې وه هغه چېرته وه؟ هغه چا ويل هلته ده او چا ويل هغه خيمه کې ده خو بلآخره هغه مور او پلار يې ودار شول چې هسې نه کومه خطرناکه خبره نه وي ترېنه شوي ماشومه يې را څخه پټوله بيا موږ ورته وويل چې هيڅ د تشويش خبره نه شته موږ راغلي يو څه مواد ورکوو خو بيا يې هغه ماشومه راپيدا کړه، هغه ما په خپل موټر کې له ځانه سره کښېنوله او د ننګرهار والي صيب ته بوتله بيا هغه ورته وويل چې تا دغه مرکه کړې ده نو د هغې په انعام زموږ امېر يو لک روپۍ انعام درته مقرر کړی دا به له ځانه سره ساتې بيا مولوي صيب دا خبره هم ورته وکړه چې دلته زموږ په دغه کيمپ کې څومره ښځې دي ددې ټولو په سر ته مشره شوې دومره باغروره او با احساسه ماشومه وه نو د ملا صيب دغه ظرافت او دغه توجه وه له ولس سره نو دا هغه شيان دي چې ما هغه بله ورځ هم د ثالث عمر په نوم کتاب له ليکوال سره خبرې کولې چې د ملا صيب مرحوم رحمه الله په هره يوه غټه او وړه موضوع ځانګړي کتابونه ليکل کيږي، نو الله تعالی دې په ملاصيب رحمه الله باندې رحمتونه نازل کړي او الله تعالی دده دغه ټولې سعيې او کوششونه او دغه مېړانې او اتلولۍ يې چې کړي الله تعالی دې قبولې او منظورې کړي او دغه اوسنی نظام او حرکت چې ده ان شاءالله د کاميابۍ په ساحل کې ده نوره هم بريا او کاميابي ورته غواړو له تاسو څخه هم مننه

محترمو لوستونکو! د افغانستان اسلامي امارت پرمهال د اطلاعاتو او کلتور رياست مسئول او د فرهنګي چارو کميسيون اوسنی مسئول الحاج مولوي عتيق الله عزيزي و چې د مرحوم عاليقدر اميرالمؤمنين ملا محمد عمر مجاهد نورالله مرقده په اړه يې له مونږ او تاسو سره د سترګو ليدلي جالب مالومات شريک کړل له ملتيا مو مننه



## شهيد منصور د ميړانې، شجاعت او مردانګۍ تاريخ جوړ کړ!!

م ـ مبصر

په داسې يوه حالت کې چې د صف د انشعاب او پاشل کېدو انديښنې تر بل هر وخت ډېرې مطرح وې، منصور رحمه الله په همدې سخته شيبه کې د علماء کرامو پر صف د لوی خدای يوه بې ساري پيرزوينه وه.

نن د هغه په شهادت کلونه اوړي، خو د لاس نښې يې لا هم ددې ستر صف په هر کونج کې ښکاري.

هغه رحمه الله د مبارزې په تاريخ کې يو نه تکرارېدونکې څېره وه.

هغه که به هر لوري ته مخ کړ، رقيبانو يې مخه نه ليده. بس تا به ويل تقدير ټولې مهرې د همدې عظيم شخصيت د غوښتنو په اساس قطار کړې دي او يو بشپړ هيواد د همده د مټو په محور چورلي.

د هغه رحمه الله څو بعدي شخصيت دده رقيبان حيران کړي و، چې اخر په کوم ميدان کې ددې اوسپنيز سړي په وړاندې ودرېږي.

هغه په جګړه ييز ډګر کې د يوه تکړه قوماندان ښه غوره کړې وه او په سياسي ميدان کې د يوه پياوړي ډيپلومات په حيث لوبېده.

منصور رحمه الله په يوه تر ټولو ناهيلې شېبه کې د امارت زعامت ته اوږه ورکړه، خو د يوه هڅاند رهبر په څېر يې د صف د کشرانو او مشرانو هيلې وغوړلې.

هغه رحمه الله خپلو دوستانو ته يو ښه ملګری ثابت شو او د نا اميدۍ په اوج کې يې هغوی په لوړه حوصله د ځان تر څنګ ودرېدل، مګر پر رقيبانو د تندر په څېر پرېووت او د صف د انشعاب ناولې فکرونه يې د هغوی له اذهانو ومينځل.

د وطن دا عظيم بچی د نرۍ منافقت له موږ وخوړ، خو يو عظيم تاريخ يې شاته پرېښود.

هو! د ميړانې، شجاعت او مردانګۍ تاريخ.



# تر ټولو سخته جمله "بنځه دې هم راولم"

## نو څه که به څارووالان خپله سزا وويني؟

احمدالله څرګند

په رياست نوَد کې مې ۱۵ ورځې تېرې کړې وې، خو پنځه ورځې کېدې چې تحقيق ته ئې نه وم ايستلی. د اطاق ملګرو به ويل چې تحقيق دې پای ته رسېدلی دی، يا به دې چهل ته يوسي او يا به دې پر عمومي جاده ايله کړي. يو وردګ ځوان، چې مخکې هم يو ځل بندي سوی وو راته وويل، "په موټر کې مو وړي، که ئې راسته خوا ته ورګرځولې خلاص سوې او که ئې موټر چپ خوا را وګرځاوه نو د چهل کشکې ډوډۍ حتماً درباندې خوري. "

اوولسمه ورځ سهار شاوخوا لس بجې وې د کوټې ور خلاص سو، زه ئې را و ايستلم. مخصوص اسماني رنګ کالي ئې راڅخه وکښل او خپلې شخصي جامې مو واغوستې. توري کڅوړې پر مخ کش، لاس تړلي ئې موټر ته پورته کړو، غالباً ۷ نفره وو. د کوټې له راوتلو بيا موټر ته تر ختلو پورې مې په زړه يو الله خبر وو، چې کومې خوا ته به مو وګرځوي، جادې ته که تيارې ته؟ د موټر له حرکت سره مې د زړه دربې زياتېدې، دوې دقيقې نه وې تيرې سوې چې موټر چپې ته خوا ته و ګرځېد.

يو ساعت وروسته ئې په تور بخونه سرو جامو کې يو کوچنې اطاق ته دننه کړم. په دغه درې متره اوږد او دوه متره پلن اطاق کې زه نهم نفر وم. په کوټه کې يو شل لېټره د اوبو ترموز، يو پلاستيکي طشت، څو خالي بوتلونه هم پراته وه. هلته په لومړي ځل پر اړخ خوب کولو ته مجبور سوم. له معرفت وروسته د اطاق مشر له ځينو مقرراتو هم خبر کړم:

–په دغه دهلېز کې ۱۸ اطاقه دي او په هر اطاق کې ۹ يا لس نفره دي. په شپه او ورځ کې دوه ځله د تشناب نوبت رسيږي، نو اوبه او خوراک ډېر مه کوه.

–که د اوداسه ضرورت وو، په دغه طشت کې ئې تازه کوه، خو اسراف به نه کوې.

–که د پښتورګو يا مثانې مشکل لرې نو له خالي بوتلونو استفاده وکړه، بې نوبته دې تشناب ته نه پرېږدي.

–او له کارمندانو سره جواب مه وايه ډېر بې آبه خلګ دي.

يو بل نفر کرار په غوږ کې را ته وويل، چې له جاسوسانو سره هم پام کوه.

شپږمه ورځ ئې و غوښتم. ډنګر ځوان د دهلېز له دروازې سره ولاړ وو، په سختۍ سره ئې پېښتو ويل. تر لنډ روغبړ وروسته ئې را ته وويل چې زه ستا څارنوال يم راځه راپسې. د تحقيق تر اطاق پورې مې په لار کې ځنې وغوښتل، چې اطاق ډېر يخ دی، کارمندان کمپله نه راکوي، ته يوه دانه ورڅخه راواخله. په مسکا ئې راته وويل، "ته په دوزخ کې آيسکريم غواړې. "

له دوو دهلېزونو تېر سوو، يوه ساړه اطاق ته ئې داخل کړم، مخامخ پر چوکۍ راته کښېناست. دوسيه يې خلاصه کړه. له لږ ځنډ وروسته پرته له دې چې راته وګوري وئې ويل، "کوزده هم لرې! "ما ويل هو. د اظهاراتو خالي پاڼې ئې له دوسيې را و ايستې او په ترخه لهجه ئې راته وويل، "ګوره دروغ به نه راته وايې که نه ښځه دې هم دلته راولم! "

هلته زه پوه سوم، چې ولې څارنوالان وژل کيږي...



یادونه: هغوی چې له خپل امنیتی مقام ناسمه ګټه پورته کوي، له سیاسي او غیر سیاسي بندیانو سره بد اخلاقي او تشدد کوي او له انساني، اسلامي حدودو تیری کوي، حتماً پوهیږي چې د دغه عمل عکس العمل به څومره سنګین او خط ناک وي.

نو! مخکې له دې چې له بل چا سره حساب کوې اوغ واړې قانون پلی کړې، لومړی له ځان سره حساب وکړه، خپله میرمن، بچیان، کورنۍ در په یاد کړه او بیا له هر بندي او ځوان سره تحقیق وکړه ترڅو د هغه درد او حقوق در په زړه وي که دا کار ونکړې حتماً به پښېمانه شي مګر د پښېمانۍ لپاره به وخت ونلري.

بله خبره: افغانان هرڅه منی خو ظلم، سپکاوی نه مني که نه یې مني له روسانو او هم غربیانو پوښتنه وکړه چې دغه غیرتي او انتقام اخیستونکی قوم ولي ورسره جنګیدو؟.

د افغانستان دننه جنګي مجرمین څوک دي؟

ویل شوي! د افغان حکومت د عدلیې وزیر (فضل احمد معنوي) او خارجه وزیر (محمد حنیف اتـرم) د نړیوالو جنګي جرمونو محکمې سره غواړي افغانستان کې په جنګي جرمونو ککړ کسان دغه محکمې ته معرفي اومحاکمه کړي.

پوښتنه دا ده چې اوس جنګي مجرمین څوک دي؟ ایا په هیواد کې د جنګي جرمونو لپاره کوم معین او واضح تعریف لرو؟ د بهرنیو قواوو تر وتلو وروسته څنګه دا انګیزه پیدا شوه چې په جنګي جرمونوکې بحث وشي؟ ایا په جنګي جرمونو کې بهرنیان ککړ دي که داخلیان؟ په دغه اړه به شفافه څېړنه او بحث څوک رامینځ ته کوي؟

اخري پوښتنه! ایا د نړیوالو جنګي جرمونو محکمې تر اوسه د نړۍ په کچه کوم جنګي مجرم یا کوم دیکتاتور ملت وژونکي مشران او نظامیان چې د خپلو لسونو یا نورو هیوادو په جنګي او جنایي سیاسي جرمونو کې تر غوږونو ککړ او ملوث دي کوم یو یې محکمه کړی، که محکمه کړی یې وي نو کله چیرې او څنګه؟

## افغانان باید د بهرنیو وتل په نیک پال ونیسي!

امریکایانو بالخصوص رئیس جمهور جوبایډن ښکاره وویل چې دغه جګړه مونږ ته سخته زیاته تاواني تمامه شوي، هغه په حقیقت کې امریکایې پوځ ته نجات ورکړ، بلکې د امریکا اقتصاد او امن ته یې نجات ورکړ، د جوبایډن اوسنی سیاست د بل هر امریکایې مشر په پرتله حکیمانه او رغوونکی بللی شو.

جوبایډن غواړي نړۍ کې د امن یو حالت رامینځته کړي چې دا د امریکایې ولس په خیر هم ده او دا سبب دی چې له افغانستانه یې ټول قوتونه پرته له قید او شرط ویستلو لړۍ شروع کړه.

نو مونږ افغانان هم باید دغه وتل یو مثبت او ښه ګام وبولو چې الحمدلله ددوی په وتلو سره مو خپلواکی ملي حاکمیت ترلاسه کړ اوس خبره دا ده چې خپلمنځي مسائل سره په عجله حل او د یوه ارام او سوکاله افغانستان د جوړیدو شاهدان اوسو او هرډول مغرضو حرکاتو ته چې ملي او دیني هویت ته زیان رسوي مخه ونیسو او پر خپلو شخصي- غوښتنو زیات ټینګار ونکړو یو بل ته معقول اړین تنازل وکړو.

ملي مصالحه رامینځ ته کړو یو نوی ملي، اسلامي باب قایم کړو او دغه زرین فرصت له لاسه ورنکړو.

# اسلامي ښوونه او روزنه

ليکنه شفيق الله بهير

د اسلام په نامه سر ښندونکی نسل باید د تل لپاره د اسلامي تاریخ یو ځانګړي او مشخص اړخ ته په خاصه توګه پاملرنه وکړي، ځکه چې د تاریخ دغه اړخ د اسلامي ښوونې پر څرنګوالي او نوعیت باندې یو خاص اثر لري، نو له همدې کبله په کار دی چې د اسلامي ښوونې توغ وچوتونکي که په هر هیواد، وخت او زمان پورې اړه لري د تاریخ په دغه اړخ ژور فکر وکړي.

د تاریخ دغه اړخ ددې ستر حقیقت څرګندوونکی دی چې اسلامي ښوونه د الهي کتاب (قرآن کریم نبوي احادیثو) د تعلیماتو په رڼا کې یو وخت داسې بې مثاله او غوره نسل روزلی و، چې ساری یې په اسلامي تاریخ کې څه چې په ټول انساني تاریخ کې هم نه موندل کیږي، نو له همدغه ممتاز نسل څخه زموږ مراد د رسول الله صحابه کرام دي، د صحابه کرامو رضوان الله علیهم اجمعین معلم او ښوونکی رسول الله ص و، نو له همدې کبله د اسلام په مقدس دین کې د اسلامي ښوونې او روزنې مدرس او معلم یو ځانګړی امتیاز لري، الله تعالی علماءکرامو، معلمینو او مدرسینو ته خورا ستر مقام ورکړی دی، هغه دا چې الله ج په قرآن کریم کې ربانیین نومولي دي او فرمایلي دي.

ولکن کونوا ربانیین بما کنتم تعلمون الکتاب وبما کنتم تدرسون (سورۀ ال عمران، ایت ۷۹)

ژباړه: او لیکن شئ تاسو عالمان عاملان روزونکي په سبب ددې چې تاسو یاست چې خلکو ته د کتاب (د شرعي احکامو) ښودنه کوئ او په سبب ددې چې تاسو د کتاب الله تدریس کوئ.

امام بخاري رحمه الله ددې آیت په تفسیر کې ویلي دي، په تحقیق سره رباني هغه چاته ویل کیږي چې په کوچنیوالي کې د خلکو روزنه او تربیه کوي مخکې له دې چې هغوی ستر شي لکه څرنګه چې ابن عباس رضی الله عنهما ویلي دي، معنا د رباني دا ده چې تاسې حلیم عالمان اوسیږئ،

امام طبري په تفسیر جامع البیان کې د پورتني ایت تفسیر داسې کړی دی.

تاسې حکیمان عالمان شئ یا په بله معنا عالمان متقیان شئ بیایې ورپسې لیکلي دي چې په فقه او حکمت پوهه عالم له هغو مصلحینو څخه دي چې وګړي د هغوی په چارو کې په تعلیم او ښېګړې ورښودلو سره تربیه کوي او هغوی هغه څه ته دعوت کوي چې د هغوی لپاره ګټور وي، په همدې اساس رباني هغه څوک دی، چې هغه په علم، فقه، سیاست، تدبیر او د خلکو د چارو په سمون پوره وي او ترسره کوي یې، او هغوی ته د هغه څه ښودنه کوي چې په دین کې هم ګټور وي او په دنیا کې هم.

په همدې اړه امام غزالي رحمه الله په خپل کتاب احیاء علوم الدین کې لیکلي دي، هغه څوک چې عالم شو او په خپل علم یې عمل وکړ او نورو ته یې درس کړ نو دده د عظمت ستاینه په اسمانونوکې کولی شي، ځکه چې داسې عالم د لمر په شان دی چې نورو ته رڼا ورکوي او په خپل ذات کې منور وي، او د هغو مشکو په څېر دی چې نورو ته هم خوشبو ورکوي او په خپله هم خوشبویه وي.

له همدې امله د ښوونې او روزنې دنده خورا عظیمه دنده ده، هغه څوک چې الله تعالی یې د خلکو معلم وګرځوي هغه ته یې عظیم امانت ورسپارلی دی، ځکه چې دا د ټولو انبیاءعلیهم السلام دنده وه او هغوی ټول ښوونکي او معلمین مبعوث شوي دي، لکه څرنګه خاتم النبیین محمد صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي، په تحقیق سره زه ښوونکی لیږلی شوی یم، دغه راز نبي علیه السلام د تعلیم او تعلم عظیمه دنده په مرتبه کې د جهاد في سبیل الله سره برابره ښودلې ده او فرمایلي دي: څوک چې زما دغه جومات (مسجد النبوي) ته راشي او هغه نه راځي مګر ددې لپاره چې علم تدریس کړي او یا یې زده کړي نو داسې شخص د في سبیل الله مجاهد په مرتبه کې دی، یعنې په فضیلت او مقام کې.

نو د اسلام د بلنې او لارښوونې اصول چې په کوم کتاب کې موجود دي هغه اوس هم له موږ سره شته نو راځئ چې د تاریخ دغه اړخ ته ځانګړې پاملرنه وکړو تر څو خپل مسلمان ملت په سوچه اسلامي تعلیماتو را ژوندی کړو.

# په پوځي ډګر کې
## د ستر قائد پیغمبر ﷺ د بریاوو لاملونه

لیکوال : جنرال محمود شیت
دریمه برخه
غوره عسکر

### د غوره عسکر ځانګړنې:

د غوره عسکر او تکړه سپاهي ځانګړنې په لاندې ټکو کې رالنډوو: «۱- راسخه عقیده . ۲ - لوړ مورال. ۳ - پیاوړی ضبط ۴- پیاوړی اعداد او بدني ځواک. ۵- کاري تنظیم ٦- ښه تجهیز»

د غوره سپاهي لپاره هرځای، هر وخت لپاره همدا خصوصیات دي، نو آیا د نبي علیه السلام صحابه هم په همدغو ځانګړنو او مزایاوو سره جوړ او برابر و؟ هغه چې موږ یې یو ځواکمن لښکر ګڼو ، آیا دوی پدغو خصوصیاتو کې څه اندازه له عربو مختلف و، کوم چې د دوی نسبت ورته کیږي، صحیح خبره داده چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم هغه څوک و چې پدغو ټولو صفاتو اوځانګړنو سره یې د مسلمانانو لښکر ځواکمن وګرځاوه، هغه پدوی کې ددغو صفاتو راوستلو لپاره ډېرې هلې ځلې کولې، په همدې سره یې دوی داسې یو قوت او ځواک وګرځاوه چې څوک ورباندې غالب کېدلای نه شول. دوی لدې نه مخکې د نورو قامونو او قبایلو په څېر و، چې په دوی کې ځانځاني او انانیت ډېر غالب و، دوی د دسپلین، نظم او نظام په معنا نه پوهیدل، هیڅ کومه سالمه عقیده یې نه درلوده.

دا څه اسانه کار نه دی چې یو انسان دې د خپلو سرو او ملګرو خوی او عادات له یو حالت څخه بل حالت ته په اړولو کې داسې ژر بریالی شي، مګر دا د الله تعالی مرسته وه او دده دغه کامیابي له هغه هم ډېر پورته او ستره واقعي معجزه ګڼل کیږي چې موږ یې تصور کوو.

### د ځانګړنو تفصیل:

#### (الف) راسخه عقیده او ټینګ ایمان

کله چې صحابه رضي الله عنهم د پیغمبر صلی الله علیه وسلم په رسالت ایمان راوړ، دوی د خپل ایماني غیرت له مخې دښمنانو سره جنګېدل، څو د الله تعالی کلمه هم لوړه شي ، دوی له خپلې عقیدې څخه په دفاع کې په بشپړ باور او اعتقاد سره خپل کورونه ، وطنونه ، مالونه پرېښودل او ځانونه یې خطر ته واچول او همدې راسخې عقیدې حتی له خپلو اولادونو ، خپلو خپلوانو سره جګړې ته اماده کړل.

د دین په لاره کې یې هرڅه ارزانه وګڼل او مصرف یې کړل، پلرونه له ځامنو سره ، وروڼه له خپلو سکنې وروڼو سره او کورنۍ له کورنۍ سره ښکېل شولې، کله چې د اسلامي اصولو مخالفت راغی، نو بیا تورو سره جلا کړل.

ابوبکر رضي الله عنه له مسلمانانو سره و، ځوی یې عبدالرحمن له مشرکینو سره ملګری و، عتبه بن ربیعه له قریشو سره ملګری و، خو ځوی یې حذیفه له مسلمانانو سره و. کله چې رسول الله صلی الله علیه وسلم د بدر په ورځ د نیول شویو بندیانو په هکله له حضرت عمر رضي الله عنه څخه مشوره وغوښته ، نو هغه وویل : زما رایه داده چې که چېرته ماته د فلانکي (قریب) اختیار راکړې نو زه به له هغه سر ووهم؛ حضرت علي ته د خپل ورور عقیل بن ابي طالب واک ورکړل شي چې له هغه سر ووهي او حمزه ته د فلانکي (چې ورور یې کېده) واک ورکړې، چې هغه ته سر قلم کړي، ترڅو الله تعالی ته معلومه شي چې د مشرکینو لپاره زموږ په زړونو کې هیڅ رحم نشته.

کله چې د عتبه بن ربیعه مړی د بدر په ورځ په څاه کې د غورځولو لپاره کشکول کېده، پیغمبر صلی الله علیه وسلم د هغه ځوی ته وکتل ، هغه خفه غونډې و، رنګ یې وهلی و، نو هغه صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل: اې حذیفه کیدای شي ستا په زړه کې د خپل پلار په شان کې څه تېرېږي؟ حذیفه رضي الله عنه ورته وویل: نه ! قسم په الله اې د الله تعالی رسوله، ما د هغه او د هغه په عاقبت کې هیڅ شک نه دی کړی، خو زما پلار د رایې ،

زغم او فضیلت خاوند و، ما امید درلود، چې الله تعالی هغه ته د اسلام هدایت وکړي، مګر ما چې هغه ته د اسلام کومه تمه وه، او څه چې ده ته ورسېدل چې دی په کوم کفر مړ شو، نو زه دې خبرې غمجن کړم».

په غزوة بني المصطلق کې عبدالله بن ابي د منافقینو مشر کوښښ کاه چې د مهاجرینو او انصارو ترمنځ فتنه او جنګ راپورته کړي، رسول الله صلی الله علیه وسلم چې ولیدل ، فوراً یې د حرکت کولو امر ورته وکړ، ترڅو د فتنې خبره نوره ونه پرسېږي، کله چې مسلمانان مدینې منورې ته رسېږي، نو د عبدالله بن ابي ځوی عبدالله نبي علیه السلام ته راوړاندې شو، له هغه څخه یې دخپل پلار د وژلو لپاره اجازه وغوښته، ځکه چې هغه د فتنې اور ته لمن وهله، خو پیغمبر صلی الله علیه وسلم هغه ته ښه وکړه، ځوی ته یې وویل: مور هغه نه وژنو، نرمي ورسره کوو، او د هغه دملګرو له وجې چې له مور سره دي، ښه معامله کوو. په غزوه بن قریضه کې یهودو د ابولبابة حاضرېدلو غوښتنه وکړه چې له هغه څخه مشوره واخلي، نو پیغمبر علیه السلام هغه ته اجازت وکړ، چې ورشي، کله چې یهودو هغه ته وویل چې : آیا هغوی د محمد خبرې ته غاړه کېږدي؟ نو هغه ورته وویل : هو، خو غاړې ته یې اشاره وکړه ، لکه هغوی یې چې دې ته متوجه کول چې ټول به ذبح کېږي.

مسلمانان د ابولبابة په اشاره په هغه وخت کې پوه نه شول، خو هغه په خپله ډېر ژر احساس کړه چې د الله تعالی او دهغه پیغمبر سره یې ستر خیانت کړی، نو په ډېره پښېماني کې جومات‌ته لاړ، ترهغې چې ځان یې د مسجد نبوي ترستنې پورې وتاړه او ترهغې پورې هلته پاته شو چې الله تعالی ورته ښښنه راولیږله. دمکې له فتحې نه څه موده مخکې ابوسفیان مدینې منورې ته راغی، هغه ام حبیبه ته ورغی ، چې دده لور او دنبي علیه السلام مېرمن وه، خو هغې له خپله پلاره بستره ټوله کړه ځکه چې هغه ورته یو نجس مشرک ښکارېده، اګر که هغه یې محبوب پلار هم و.

مسلمانانو د الله تعالی په لاره کې ډېر مالونه خرچ کړل، تردې چې ابوبکر رضي الله عنه چې یو بالاپوش یې درلود ، هغې نه یې هم ځان ښغمه کړ، پداسې حال کې چې هغه اسلام نه مخکې ۴۰زره دیناره درلودل.

که دا راسخه عقیده او ټینګ ایمان نه واي، نو نور به څه و، چې هغوی یې داسې ښو کارونو او عملونو ته مجبورول. آیا هغه څوک چې عقیده یې یواځې د جاهلیت خویونه، د انانیت تعصب او ځآنښـودنې او فخر و، هغسې جنګېدلای شي لکه د عقیدې څښتنان ؟!

یقینا یواځنۍ خبره د مسلمانانو عقیدې کې وه چې دوی یې د لوړو اهدافو تحقق او په دفاع کې مرګوني جګړو ته چمتو کول.

## (ب) لوړ مورال:

هر هغه لښکر او پوځ چې لوی شمېر کې وي، کاري تنظیم ولري، په قوي وسلو سمبال وي، که چېرته لوړ مورال او روحیه و نه لري ، دهغه هیڅ ارزښت نشته. په دویم نړیوال جنګ کې د ایټالیا لښکر ترټولو خطرناکې او وژونکې وسله باندې مجهز و، دقیق نظم او دسپلین یې درلود، شمېر یې هم زیات و، مګر معنویات او مورال یې بایللی و، د جرمني پوځونو باندې دروند بار وګرځېد، د دوی ملاترو پوځونو به هغه ځایونه چې د ایټالیانو تر تسلط لاندې و، دهغوی په اصطلاح: تسلیم شوي ځایونه بلل، ځکه چې دوی به هر چېرته لږ غوندې ربښتیا یا په وهم خطر حس کړی و، دوی به بدون د جنګه ورته ځایونه پریښي و.. نو د دوی شتون او عدم شتون یو برابر و.

پیغمبر صلی الله علیه وسلم د بدر په ورځ له جګړې دمخه او بیا په منځ کې د خپلو ملګرو حوصله افزایي وکړه ، دهغوی یې معنویات پورته کړل، ترڅو د قریشو د لښکر ډېروالی ته پروا ونه کړي، نو ځکه خو د مسلمانانو پدې تاریخي جګړه کې موراالونه لوړ و. حتی د تنکیو ماشومانو مورال بیخي پورته و، څنګه چې دا د عفرا دوو ځامنو لخوا د ابوجهل وژلو ته په تلوسه کې معلوم شو.

آیا د بدر په ورځ د مسلمانانو بریالیتوب امکان درلود، دغسې د احد نه یوه ورځ وروسته د مشرکانو پسې اخیستل، په احزاب کې دهغوی ثبات او استقامت ، په تبوک جګړه کې د هغوی اقدام، امکان درلود، که هغوی لوړ مورال او روحیه نه درلودای؟

څنګه چې پیغمبر صلی الله علیه وسلم د خپلو ملګرو د مورال اوچتولو لپاره له مختلفو لارو چارو کار اخیست، دغسې یې د خپلو دښمنانو د مورال ماتولو لپاره هم له هرې حربې، طریقې او

مناسبت ځخه کار اخیست. د حدیبیې ، د عمره قضاء او د تبوک جګړې د ډګرونو نه وې بلکې د معنویاتو وې.

د عمرة القضاء پېښې د مکې خلکو زړونه خلاص کړل، ځکه چې مورالونه یې مات شول بیا د مکې فتحې د مکې دروازې ورته خلاصې کړې.

لکه ځنګه چې د تبوک جګړې په نتیجه کې د روم لپاره یو روحي او نفسیاتي مرګ و، پدې سره عربو ته معلومه شوه چې له روم سره جګړه کولای شي، لدې نه مخکې خلکو دا ګمان کاوه چې له رومیانو سره جګړه ناشونی کار ده.

پیغمبر صلی الله علیه وسلم په ټولو غزواتو کې د خپل دښمن معنویات په نښه کول، بلکې د معنویاتو ماتولو لپاره یې له هغه ډېر کار کاوه کوم چې د مادي ځواک ماتولو لپاره به یې کاوه ځکه چې هغه به هر وخت تمه درلوده چې دښمنان یې بغیر جنګه سمې لارې او هدایت ته راوګرځي، د هغوی ژوندي پاتې کېدلو کې یې دا ټینګار و، چې اسلام راوړي، دعا به یې کوله: اللهم اهد قومي فإنهم لایعلمون. اې ربه زما قوم ته هدایت وکړې ځکه چې هغوی نه پوهیږي.

د نبي علیه السلام اکثریت غزاګانې د معنویاتو جګړې وې چې په نفسونو او زړونو یې مستقیما اغېز کاوه، د زیانونو جګړې نه وې چې د خلکو روحونه واخلي او دولت ترلاسه کړي.

ښکار ده چې موږ دلته د مسلمانانو تقدیر او برخلیک باندې د باور او اعتماد اثر هېر نه کړو چې هغوی په تقدیر د ایمان له وجې په پوره زړورتیا سره هر ډول خطرونو ته د ورانګدې کېدلو خپل مورال لوړ ساته. ځکه چې تقدیر حتمي پېښیږي، او شهید به جنت ته ځي، یقینا د دوو غوره خبرو پېښېدل: چې یو نصرت او بل شهادت حتمي و: قُلْ هَلْ تَرَبَّصُونَ بِنَآ إِلَّآ إِحْدَى الْحُسْنَيَيْنِ وَنَحْنُ نَتَرَبَّصُ بِكُمْ أَن يُصِيبَكُمُ اللَّهُ بِعَذَابٍ مِّنْ عِندِهِۦٓ أَوْ بِأَيْدِينَا فَتَرَبَّصُوٓا إِنَّا مَعَكُم مُّتَرَبِّصُونَ . الآية. دوی ته ووایه: "تاسي چې زموږ په باب کوم شي ته سترګي په لاره یاست، هغه له دې پرته بل څه دی چې له دوو ښېګنو (بریالیتوب یا شهادت) نه یوه ده. او موږ چې ستاسي په باب کوم شي ته سترګي په لاره یوو، هغه دا دی چې الله په خپله تاسي ته سزا درکوي، یا یې زموږ په لاسونو درکوي.

**(ج) پیاوړی نظم او ضبط:**

مسلمانانو به د پیغمبر داسې اطاعت کاوه چې هیڅ حد یې نه و، دهغه حکمونه یې له کوم شک پرته، په پوره امانتداري او ټینګار سره ټکي په ټکي عملي کول، که څومره به هم حالات بېړني او مسؤلیت سخت و.

داسې څوک نه شته چې د مسلمانانو د نظم او ضبط ځواک پټ کړي، ځکه پدې کې بېلګې دومره دي چې اندازه یې نه کېږي او ځکه چې اسلام کې اطاعت د دین یوه برخه ده : (يَٰٓأَيُّهَا الَّذِينَ ءَامَنُوٓا أَطِيعُوا اللَّهَ وَأَطِيعُوا الرَّسُولَ وَأُولِي الْأَمْرِ مِنكُمْ) الآية . اې مؤمنانو! د الله تعالی او رسول او د هغو کسانو اطاعت وکړئ چې ستاسي څخه د امر خاوندان دي.

**(د) مترقي اعداد او روزنه:**

پیغمبر صلی الله علیه وسلم به د خپلو ملګرو د غشو ویشتلو او آس سواري په روزنه ډېر ټینګار کاوه، هغه صلی الله علیه وسلم به فرمایل : (من ترك الرمي بعدما علمه، فإنما هي نعمة كفرها). چا چې ویشتل له زده کړې وروسته هېر کړ، نو هغه د نعمت کفران وکړ.

پیغمبر صلی الله علیه وسلم د خپلو ملګرو په غشو ویشتلو او اسواري مسلسلې روزنې باندې هم اکتفا ونه کړه ، چې موږ ورته په اصطلاح بدني روزنه او اعداد وایو، بلکې هغوی یې عملاً د تشکیلاتو په جوړولو، په ګزمه کولو، د جګړې په مختلفو طریقو او د پیرې، ستر و اخفاء په لوازماتو وروزل، چې موږ ورته عملي یا کماندویي روزنه وایو.

هغه په ټولو غزواتو د لارو څارلو لپاره خپل بېړني تشکیلات برابرول، ترڅو پدې سره دلیرډونکي لښکر حمایه او ساتنه وکړي او هم د دښمن ناڅاپي حملې مخنیوی وکړي. په بدر ، احد او زیاتره غزواتو کې یې د صفونو په ترتیب سره جګړه وکړه، په غزوه احزاب کې د خندق (کندې) جوړولو شاته نوري دفاعي سنګرونه او مورچلونه یې جوړ کړل، دغه راز په خندق کې یې خطري ځایونه او نقاطو په نښه کړل او د ساتنې لپاره لازم تدابیر ونیول.

د یهودو خلاف یې بیا د کلاګانو نیولو او نړیوالو جګړو ته مخه کړه، لکه څنګه چې د ابي سلمة رضي الله سریې د سهار په وخت کې په بنو اسد حمله وروړه، پدې دواړو جګړو کې کامیابي په مترقي روزنې باندې دلالت کوي. لکه څنګه چې به یې شپه او ورځ په سختو او اوږدو لارو کې قطعات او سریې لیږلې چې دا دهغوی د سخت اعداد او روزنې لاره ګڼل کیږي.

دا ټولې بدني او عملي روزنې ورسره شاقه (سختې) روزنې د مسلمانانو لپاره ښه مترقي اعداد و، دوی یې پدې قادر وګرځول چې په مختلفو ظروفو او حالاتو کې وجنګیږي.

**(هـ) د لښکر منظموالی:**

د مسلمانانو لښکر د مهاجرینو، انصارو او اکثره مشهورو قبائلي تازه مسلمان شویو څخه جوړ و، ددې معنا دا شوه چې: د مسلمانانو لښکر له ټولو عربي قبائلو څخه جوړ و، له یوې خاصې قبیلې څخه نه و، نو له همدې لامله د دوی کامیابي داسې نه وه چې دیوې قبیلې لپاره ویاړ وي او بلې لپاره نه وي، لکه څنګه چې د یوه قام ماتې د دوی ټولو لپاره عار نه و، ځکه چې دا لښکر یوازې دیو قام څخه نه و، حتی یوازې د عربو هم نه و.

زه خو پدې عقیده یم چې دغه تنظیم او وحدت سبب یوازې د وحدانیت عقیدې اثر و، بل هیڅ شي پکې اغېز نه درلود، ټول قبائل او قامونه یې داسې وګرځول چې په اسلامي پوځ کې د مقاومت جذبه کومې خاصې ډلې او قبیلې پورې منحصر نه کړي، چې دې خبرې د جګړې کار ډېر اسانه کړ.

**(و) ښه تجهیز:**

مشرکان په لومړي سر کې په مسلمانانو د خندق تر غزا پورې په وسلو او تجهیزاتو کې برلاسي و، خو بیا قدم په قدم د مسلمانانو تجهیز او په وسله سمبالښت ښه شو.

دلته دا کفایت کوي چې موږ دمکې د فتحې پرمهال د مسلمانانو کتیبه خضراء (شنه قطعه) په اړه کله واورو چې مشرـ یې خپله نبي علیه السلام و او افرادو سره داسې توري وې چې خالي غلطول پرې کېدای شول.

بیا پیغمبر صلی الله علیه وسلم خلک د وسلو جوړولو لپاره وهڅول، وې فرمایل: په یقیني توګه الله تعالی په یوه غشيـ درې کسان جنت ته داخلوي: جوړوونکی یې، چې په دغه نیک کار کې د ثواب او خیر اراده لري. ویشتونکی او ویشتونکی ته برابروونکی یې، نو تاسې ویشتل وکړئ او سپرلي وکړئ، که چېرته تاسې ویشتل کوئ نو دا ماته له سپرلۍ کولو ډېر خوښ عمل دی.

### خدای مه کړه

مجاهده منحرف که دي افعال سي
د شهیدو ارمانونه به پیمال سي

د غرور او تکبر پر نیلي مه ځه
د خدای در کې به دي رد کړي اعمال سي

د هدف لاره دي پام غلطه نه کړې
در پسې به د یتیم د اه وبال سي

ځان تابع د مادیاتو ګوره نه کړې
هر کردار به دي د تیرو په مثال سي

د فاني خوندونو حُب ته نظر مه کړه
هسي نه چې زړه دي ګیر په دغه جال سي

بغض، عناد او نفاق مه ساته په زړه کې
پر دښمنو کامیابي به دي محال سي

پښېماني په هغه ورځ بیا ګټه نه کړي
چې حساب، کتاب مشهوده په مثقال سي

# ګرانه لیکواله

## او قدرمن شاعره!!



خالق یار احمدزی

زما ګران لیکوال او قدرمن شاعره! غواړم نن دې په څو کرښو کې خپلو مسؤلیتونو ته متوجه کړم او خپلې ماتې ګوډې کرښې دې مخې ته کېږدم، خو هیله ده، زما دا کرښه بې ادبي تعبیر نه کړې او تر پایه یې په سړه سینه راسره ولولې.

قدرمنه قلمواله! الله ج پر تا زیاته پیرزوینه کړې چې ته یې د ادب په ستوري بدل کړی یې او ولسونو ته د لیکنو له لارې د خپل فکر ښه رسونه او ترجماني کوې.

ته باید د دې کار د لاښه مخته بیولو لپاره ځینې کړنلارې په پام کې ونیسې تر څو ادبي ډګر دې په خدماتو لا ښکلی او رنګین شي.

تر هر څه وړاندې د خپلو کرښو په ترسیم کې د الله ج رضاء او د ولسونو پوهاوی خپله موخه وګرځوه او له ناوړه افکارو، عقاید او خیالاتو د هغوی د مخ اوښتو پلانونه وسنجوه.

په خپلو کرښو کې دې د اسلامي عنعناتو او رواجونو ښه ځلونه کوه، د مشرانو تاریخونه راسپړه، د خپلې جغرافیې په هکله ولسونو ته مالومات ورکوه، د ساینس او ټکنالوژۍ له مهمو پیښو یې خبروه، د پښتو ادبي ژانر په هکله ورته ځیرنیز توکي برابروه، او د خاورې د مالکیت او له دین، ناموس او مقدساتو څخه د دفاع احساس ورکوه.

هڅه کوه، هره کرښه دې د خپلو همفکرو لپاره رغوونکې، مثبته او اصلاحي بڼه ولري او د دې ترڅنګ د دین او وطن د پټو او ښکاره دښمنانو تخریب هم په کې نغښتی وي.

په ټولنه کې هغه ناخوالې، ستونزې او مشکلات تل را برسیره کوه، چې خلک ورسره لاس او ګریوان دي او ترڅنګ یې د مسؤلینو او مشرانو د تشویق او هڅونې لپاره د ځینو رغوونکو چارو خبرونه هم رسنیز کوه.

د روانو ناخوالو رسنیز کول او د تاریخ حافظې ته سپارل یې، مسؤلیت دی چې باید ترسره یې کړې.

که د سیاسي لیکنو ترڅنګ، مهمې دیني لیکنې درته ارزښت لري، نو هڅه کوه دیني مطالعه دې پراخه وي او یواځې په کاپي پیسټ ګوزاره مه کوه.

پر دې وپوهېږه! هر شعر، نثر، کیسه او نورو لیکن توکو کې چې د خدمت، ثواب او اصلاح موخه نه وي، نیت صفاء نه وي او د پیسو، شهرت او نورو امتیازاتو د ترلاسه کیدو لپاره کښل شوی وي، بې ګټې خواري ده او نتیجه ترې لاسته نه راځي.

کوښښ کوه هره لیکنه له بشپړې څیړنې او ارزونې وروسته خپره کړې، ځکه د هرې لیکنې کره والی ستا د اصلیت او اعتماد برخلیک ټاکي.

که طنزیه توکي لیکې، هیله ده د یوه انسان انساني کرامت درڅخه تر پښو لاندې نه شي او دا د یوه متدین کس ځانګړنه ده چې باید ویې لري.

په سیاسي سوژو کې لیکنیزې کرښې دې باید په دروغو، عوام فریبي او د مقابل لوري په توهین او تحقیر ورتولې نه وي، حقیقت لیکه که څه هم د خلکو د پام وړ نه ګرځي..

کوښښ کوه خپلو کرښو کې د اسلام، هیواد او مقدساتو دښمنان وخت پر وخت افشاء او خلکو ته وښایې.

له هر ګوند، نظام او ډلې پورې چې ځان تړلی بولې، په ملاتړ کې یې تر حده زیاته غلوه او بیباکي مه کوه ستاینه یې همدومره پکار ده، چې په کې موجوده وي.

د احساساتو پرمهال هیڅ هم مه لیکه، کله دې چې فکر او دماغ آرام وه او له تشویشونو، اندیښنو او غمونو لرې وې، نو قلم دې څرخوه.

هڅه کوه خپل مهم کالمونه، لیکنې، شعرونه او ټول لیکنیز مواد جمعه بندي کړې او که اړینې وې، نو تر هر اړخیزې بیا ارزونې وروسته یې چاپ کړه.

د ټولنیزو رسنیو لپاره لنډې لیکنې تیاروه، ځکه اوږدې لیکنې د خلکو د پام وړ نه وي؛ هو! که اوږده لیکنه هم وه، نو باید دومره جالبه وي، چې لوستونکی په کې تږپایه د ستړیا احساس ونه کړي.

د هرې لیکنې په تړاو سرچ، لټون او پراخ پوښښ کوه او د خپلو خیالاتو له مخې یې مه لیکه؛ ښه به وي چې مهمې لیکنې دې مأخذونه له ځانه سره ولري.

د ټولنیزو رسنیو څارونکی نه؛ لیکوال له ځانه جوړ کړه، که د نورو کرښې لولې نو په دې فکر یې هم لوله چې ترې ددغه هنر "لیکوالي "زدکړه وکړې.

په مجالسو کې د علماوو لخوا مهمو مسائلو، د سپینږیرو تاریخي او ارزښتناکو خبرو او د برجسته شخصیتونو مهمو ویناوو ته خپلو لیکنو کې ځای ورکوه.

په لیکنو، شعرو او نورو ادبي پنځونو کې له غلا، نقل

او نورو هغو اقداماتو ډډه کوه چې سبا دې له امله اصلیت خدشه دار کیږي؛ دومره ولیکه څومره دې چې زده وي، د پردیو کرښو پېټول له سرې لیکوال نه شي جوړولای.

شاعرانو ته:

شاعران د شعر لیکل تر الهام او تخیل پورې تړلې بولي، خو که تاته دا تعریف د منلو نه وه او په خپل عزم دې کړی سره نښلولې نو باید د قافیو جوړښت، شعري وزن، روانتیا او جالبیت ته یې ښه پام وکړې او ترځنګ یې باید ستا شعر یو روښانه پیغام له ځانه سره ولري.

د شعر لیکلو لپاره له سندرو او بیباکه سرودونو اوریدو ډډه وکړه ځکه دا کار دې ټولې هڅې بې برکته او بې اغیزې کوي.

هر شعر دې له هر څومره ښه جوړښت سره هغه مهال د تقدیر وړ ده، چې په یوه سپیڅلې روحیه او مثبت فکر لیکل شوی وي، د سترګو، قد او خال او ښایستونو په هکله ننې او پروني شعرونه دې نه یواځې داچې د سختې غندنې وړ دي، بلکې د ولسونو په ځانګړې توګه، تنکیو ځوانانو د بې لارۍ او بې بندوباریو ته د هغوی د هڅولو لامل هم جوړیږي.

## مدرسي

شملې د مدرسو خو ان سماء ته ور رسیږي
ښکلا د دېوالونو یې طوبا ته ور رسیږي

یو سر یې پهٔ اسمان کې دی او بل سر یې پهٔ ځمکه
سند یې محمد رسول اللّٰه ته ور رسیږي

سید هم ترې محروم دی چې دنیا باندې مین وي
میراث د پیغمبر طالب ملا ته ور رسیږي

تر څو چې پاک قران وي مدرسه به نهٔ ختمیږي
رڼا به یې څلور کونجه دنیا ته ور رسیږي

بسمله مدرسه د دې دنیا حوض کوثر ده
اوبهٔ د دې کوثر کله هر چا ته ور رسیږي؟



# شکر او اسلامي لاربښووني!

بشير

هو! بیشکه د منعم( نعمت ورکوونکي) شکر اداء کول یو باطني او فطري عمل دی، انسان خپل عقل او فطرت ته په رجوع کولو سره دا حقیقت درک کولی شي چې هر کله هغه ته د کوم چا لخوا کوم نعمت ورکړل شي او یا څوک هغه ته کوم خدمت ترسره کړي (که څه هم هغه خدمت یا نعمت کوچنی څیز ولې نه وي) له امله یې باید د نعمت ورکوونکي او ترسره کوونکي شکریه اداء کړي او د هغه د زیار ایستلو او مهربانۍ څخه دي قدر دانې اومننه وکړي ، ځکه ناشکري پخپله د ډیرو نعمتونو څخه د محرومیت سبب ګرځي، د نعمتونو د زوال لامل کیږي، د ناشکرۍ په وجه خیر پورته کیږي همدا راز د احسان ، شجاعت او ایثار ختمیدو سبب هم ناشکري کیدای شي او هر چې د منعم د شکرګزارۍ پایلې دي هغه بیشکه لوړې دي چې هرانسان ته د هغه د شان او منزلت موافق نصیب کیږي.

په اسلامي شریعت کې د شکر ادا کولو په باره کې دومره تاکید او ټینګار راغلی دی چې د علماوو په نظر : د غور کولو وروسته یې وجوب په نظر راځي . علماوو ليکلي: چې کله په انسان کې د شکر ګزارۍ روح یا مزاج دومره وده ومومي چې د خالق د شکر اداء کولو نه نیولي آن د مخلوق شکر اداء کول هم په بر کې ونیسي نو بیا د مخلوق خدمت او د هر تکلیف په مقابل کې د شکر ویستو استعداد ښکاره شي او د انسان جوهري صلاحیتونه نور هم وځلیږي په نتیجه کې یې د نعمت څښتنانو په نظر کې هم د خیر او نیک کار کولو په اړه د هغوی ارادې دوه واره لوړې شي. د خالق په نعمتونو د هغه شکر اداء کول د هغه د معرفت دروازې پرانیزي او خالق سره د انسان رابطه قوي کوي، شکرګزاري د منعم او د نعمت د معرفت سبب ګرځي او هم دا د معرفت سلسله خدای تعالی سره د بنده رابطه نوره هم قوي کوي او د هغه د عشق ډیوې د شکر کوونکو په زړونو کې بلوي.

غرض دادی چې څوک د الله تعالی د بنده ګانو لخوا د ورکړای شویو نعمتونو شکر نه اداء کوي هغوی شرعاً ګناهګار دي، ځکه الله تعالی د شکر اداء کولو حکم کړی دی یا په بل سپیناوي الله تعالی د خپل نعمت شکر تر هغه پورې نه قبلوي څو هغه (شکر کوونکی) د انسانانو شکر ادا نکړي. د حضرت ابوهريرة، حضرت ابو سعید خدري او نورو صحابه وو رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ څخه د الفاظو په کم اختلاف سره لاندې روایت شوی دی :

عن ابی سعید الخدري قال: قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من لم یشکر الناس، لم یشکر الله وفی الباب عن ابي هریرة قال:قال رسول الله صلی الله علیه وسلم من لایشکر الناس لایشکر الله.( قال الترمذي هذاحدیث حسن صحیح)

ابي سعید خدري رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ وایي: رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي: څوک چې د خلکو شکر نه ادا کوي هغه د الله تعالی شکر هم نه اداء کوي. او په همدې باب کې د ابوهریره رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ د روایت ترجمه ده وایي: رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ فرمایلي: څوک چې د خلکو شکر ګزار نشي هغه د الله تعالی شکر ګزار هم نشي کیدای. امام ترمذي رَحِمَهُ اللَّهُ وایي: دا حدیث حسن صحیح دی.اوپه دې باب کې د ابوهریرة، اشعث بن قیس او نعمان بن بشیر رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ څخه هم احادیث روایت شوي دي.

پښتو کې د شکریې اداکولو لپاره « مننه» لفظ کارول کیږي په ویلو او لیکلو دواړو کې دود دی او نن سبا هر ځای، او هر چیرې د هرې دویمې او دریمې خبرې وروسته یې خلک کاروي او په خاصه توګه مسیجونو کې یو بل ته د پیغامونو په لیږلو-رالیږلو او ترلاسه کولو «مننه» کلمه زیاته لیکل، ویل او کارول تقریباً یو دود یا فیشن ګرځیدلی دی تردې پورې چې د سټیج په سر ویناکوونکي، په لارو، موټرو او موبایلونو کې د اعلاناتو خپرولو پرمهال هم په پای کې لازماً «مننه» لفظ راوړل دود دی، په دفترونوکي مامورین که هغه نارینه دي او که ښځینه له خولو څخه به یې ته« مننه؛ مننه او یاتشکر،تشکر» الفاظ اوري، ډیر ځلي دا درک هم څوک نشي کولی چې دا د چا څخه مننه یا تشکر کوي او په څه وجه یې کوي؟

خو په تشکر؛ تشکر یا مننه؛ مننه... روږدی بشریت هغه ذات څنګه هیرولی شي کوم چې فی الواقع د شکر اداء کولو مستحق دی، یعنې شکر اداء کول د هغه حق دی؛ زموږ مراد دکائنات د څښتن جَلَّ جَلَالُهُ شکر اداء کول دي، ځکه یواځې هغه ذات د شکر اداء کولو حقدار دی، خو د انسانانو شکر ګزار انسان د خپل څښتن جَلَّ جَلَالُهُ شکر کزار هم ګرځي؛ په حدیث شریف کې تیر شول چې من لم یشکر الناس لم یشکر الله څوک چې د انسانانو

شکر نه ادا کوي هغه د الله تعالی شکر هم نه ...کوي. یعنې د انسان لخوا د انسان شکر اداء کول دومره اهمیت او وزن لري چې یو انسان تر هغه پورې د الله تعالی شکر نشي ادا کولی څو چې د انسان د شکر ادا کولو مزاج په ځان کې پیدا نکړي .

دا په حقیقت کې د الله تعالی لخوا یوه لویه مهرباني او پیرزوینه ده چې د شکر ادا کولو مسئلې اهمیت ته د انسانانو ځیرکولو لپاره یې د خپل غوره استازي حضرت محمد صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ په مبارکه ژبه امت ته دا هدایت کړی دی چې گورئ! ترهغه پورې چې یو انسان د بل انسان شکر گزار نشي۔ د الله تعالی شکر گزار نشي کیدای! کنه الله تعالی د انسانانو لخوا شکر اداء کولو ته هیڅ حاجت نلري هغه د هرعیب څخه پاک دی، د هرې کمزورۍ نه مبرا دی، د هغه هره وعده رښتینې ده داسې رښتینې چې هغه پخپل وخت خامخا سرته رسول کېږي، هم هغه دی چې پخپل ذات کې یکتا او یواځې دی، خپلو بنده گانو سره د کړو وعدو لحاظ ورسره شته دی، چې په هر صورت کې یې پوره کوي هغه د بنده گانو خالق دی، په دې وجه ورسره مرسته کوي، د پریشانیو او ستونزو څخه ورته نجات ورکوي، د بې وسو او مظلومانو سره مرستې کوي، نا قراره زړونو ته قرار ورکوي شتمن دي که اړمن! ټولو هغه ته ځولۍ نیولې ... او هغه یې ورته ډکوي... بې وزلان نازوي او د هغوی فریادونه اوري... خو بنده گان په هغه یقین نلري «یحسرة علی العباد» افسوس دی په هغو بنده گانو چې هغوی د خدای تعالی په پیدا کړي مخلوق کې د خدای تعالی د صفاتو موندلو جستجو کوي تردې چې هغه سره شریکان و نیسي! رښتیا یې ویلي: « ان الانسان لکفور مبین» بیشکه انسان په ښکاره د خپل څښتن ناشکري کوي!

که په مخلوق باندې د لږ څنډ لپاره نظر واچوو نو دا حقیقت را ښکاره کېږي چې مخلوق کې؛ هر مخلوق د کائناتو د خالق یو غوره او عمده شاهکار دی « صنع الله الذی اتقن کل شئ»چا چې هر څیز تخلیق کړی دی!

نو حاصل دا شو چې شکر ته په اسلامي تعلیماتو کې کلیدي مقام په برخه دی، اسلام یې په لحاظولو ډیر زیات زور راوړی دی په عظیم الشان قرآن او نبوي حدیثو کې ځای په ځای په اړه یې تاکیدي او ترغیبي لارښوونې موندل کېږي.په دې کې د علماوو اختلاف دی چې په صبر او شکر کې کوم یو غوره دی په ټوله کې درې اقوال راغلي دي(۱) یو قول دا دی چې صبر د شکر نه افضل دی ۲ـ شکر د صبر نه افضل دی ۳ـ دواړه یوه درجه لري په همدې وجه حضرت عمرفاروق رَضِيَ ٱللَّهُ عَنْهُ فرمایلي: لوکان الصبر والشکر بَعیرین ما بالیت أیهما رکبت»که صبر او شکر دوه سورلۍ وای نوماته به دا پروا نه وه چې په کومه یوه سپور شم! یعنې دواړه پوره او برابرې دي.

د علماوو کومه طبقه چې دا وایي چې شکر د صبر نه غوره دی هغوی وایي: شکر اصل دی او صبر د وسیلې، خادم او تابع درجه لري په قرآن پاک کې شکر د ایمان سره مربوط راغلی دی « مایفعل الله بعذابکم ان شکر تم وآمنتم» (النساء\۱۴۷) که تاسو چې شکر ادا کوئ او مومنان وئ! نو الله تاسو ته په عذاب درکولو څه کوي؟

د الله تعالی په نزد باندې تر ټولو محبوب عمل شکر او د شکر خاوندان دي او تر ټولو مبغوض عمل کفر دی او د کفر خاوندان دي، په قران پاک کې دوه ډولونه ښودل شوي دي« انا هدیناه السبیل اما شاکرًا و اما کفورًا»( الدهر\ ۳)موږ انسانانو ته لار ښودلې اوس که شکر کوونکي گرځي او که کفر کوونکي. په النحل سورة کې فرمایي«ومن شکر فانما یشکر لنفسه ومن کفر فان ربي غنی کریم»( النحل \۴۰)کوم څوک چې شکر اداء کوي د هغه شکر د هغه د ځان لپاره گټور دی او که څوک ناشکري کوي نو زما رب بې پروا دی او پخپل ذات کې هغه عزتمن دی په ابراهیم سورة کې د الله تعالی ارشاد دی:« لئن شکرتم لأزیدنکم ولئن کفرتم ان عذابی لشدید»(ابراهیم- ۷)که تاسو شکرگزار شئ نو زه تاسو ته نور زیات نوازش درکوم او که کفرانِ نعمت وکړئ نو زما سزا ډیره سخته ده.

قرآن وایي:« ان تکفروا فان الله غنی عنکم، ولایرضی لعباده الکفر، وان تشکروا یرضه لکم» (الزمر\۷)که چیرې تاسو کفر کوئ نو الله له تاسو نه بې پروا دی، خو هغه د خپلو بنده گانو لپاره کفر نه خوښوي، او که تاسې شکر وکړئ نو هغه یې تاسو لپاره خوښوي.

په دې توگه په گڼو ځایونو کې د شکر او کفر تر منځ تقابل او موازنه شوې ده او شکر او د شکر خاوندان عند الله محبوب او مقبول دي د هغوی د اجر استحقاق او د الله د رحمتونو او مهربانیو ذکر یې کړی دی، نن سبا ډیر خلک د بل انسان شکر ویستل عیب گڼي او ځان لپاره یې شرم او خجالت تعبیروي او د خپلو احسان کوونکو په ښېگڼو سترگې پټوي چې دا یوه ډیره لویه بدمرغي، بدبختي او ناشکري ده حال دا چې الله تعالی د یو انسان لخوا شکر تر هغه وخته نه قبلوي څو چې هغه په ځان کې د ننه د انسانانو د شکر ویستو مزاج پیدا نکړي ... الله تعالی دې موږ ټول شاکرین بندگان وگرځوي.

امین

# څنګه اسلامي فکر په میراث پرېږدو؟

لیکنه: أبو إحسان عامر

فکري جوړښت د إنسان د بقا او بریا یواځینۍ نیغه او سپینه لاره ده.

چېرته چې فکري قوت جوړ او ځوان وي هلته بیا عسکري، مالي، اخلاقي او..... قوتونه ورځ تر بلې لا ځوانیږي او پر مختګ کوي، خو کومه ټولنه بیا چې له فکري جوړښت نه محرومه وي هلته خلک د لږ لالچ په بدل کې تر خپل هدف د بل هدف ته زیات کار کوي.

دا چې له یوې خوا فکر دومره مهم او جوړښت یې دومره اړین دی، له بلې خوا موږ په موجوده دور کې د نړۍ او افغانستان پر لمنه ودان او حاکم یو، نو په داسې یوه وخت کې زموږ څه مسؤلیت جوړیږي او موږ څنګه کولای شو چې خپل مسؤلیت په ښه توګه ادا کړو او څنګه کولای شو چې اسلامي فکر راتلونکو نسلونو ته په میراث پرېږدو؟

زموږ أسلافو خو وکولای شول چې په سترو قربانیو، د خپلو وینو او خؤلو د قطرو په قیمت د إسلامي فکر حفاظت وکړي او موږ ته یې سالم تسلیم کړي.

اوس چې هغوی نشته د هغوی یاد، إسلامي فکر او موږ ژوندي یو،

بناء: زموږ وجیبه جوړیږي چې د هغوی دغه روڼ میراث په ښه توګه وپالو او راتلونکو نسلونو ته یې په میراث پرېږدو.

موږ افغانانو چې په ناچیزه اسلحو او کمزورو وسائلو د کافرې نړۍ زور اوبه کړ، د نړۍ سرې او سپینې ماڼۍ مو نسکورې کړې، موږ چې د وارسا او ناټو ټړونونه یا خو ټوټې ټوټې کړل او یا مو د مرګ کندې ته ور ټېل وهل، دا زموږ د اسلافو (علماؤ) د یادګار (إسلامي فکر) او یوې خپلواکې جهادي انګازې برکت دی.

تاریخ ثابته کړې. څوک چې بې له فکري ځواک او بې له یوې انګازې نه سرونه او ښارونه تر لاسه کوي، د هغوی قوت او دولت وخت نه لري، د هغوی اقتدار او کردار د هغوی تر ژونده پورې ژوند کوي او د هغوی له مرګ سره مري.

موږ باید د تورې سره یو ځای ژبې او قلمونه وځرخوو، موږ باید ځانونه او اولادونه د اسلافو له کارنامو تاریخو سره اشنا کړو، د فکر د قوت او ترویج یواځینۍ لاره او چاره دا ده چې زموږ زاړه باید واړه وروزي، هغوی ته نبوي سیرت او زموږ زرین تاریخ په هر مجلس کې بیان کړي. هغوی دې په دې وپوهوي چې تاسو باید صالحین او د خپلو أسلافو پر نقش قدم سالکین جوړ شئ، د صالحو خلکو سره تعلقات مو د دنیوي او اخروي بري ضمانت کوي.

څکه خو اَلـلّـه ((ﷻ زموږ د بري لاره موږ ته داسې راښيي:

يَٰٓأَيُّهَا ٱلَّذِينَ ءَامَنُوا ٱتَّقُوا ٱللَّهَ وَكُونُوا مَعَ ٱلصَّٰدِقِينَ

اې مؤمنانو! د الله څخه ووېرېږئ او د رښتینو خلکو ملګري شئ.

علامه الوسي رحمه اَلـلّـه ((ﷻ یې په تفسیر کې زیاتوي: خلطوا هم لتکونوا مثلهم. هغوی سره دومره ګډ شئ چې د هغوی په مثل شئ.

موږ باید د اولادونو د خوراک او پوښاک سره سره د هغوی د پوهنې او روزنې لپاره شپه او ورځ یوه کړو.

موږ باید هغوی د بې دینو او بې لارې خلکو له لارې او تعلقاتو نه وژغورو تر څو هغوی له پردیو افکارو نه تأثر وانخلي.

په دې اړه سعدي رحمه الله (ﷺ) وايي:

صحبت صالح ترا صالح کند

صحبت طالح ترا طالح کند

تانواني دور شو از یار بد

یار بد بدتر بود از مار بد

موږ که غواړو چې پردی زور مات کړو باید د پردیو داعیې مخه ډب او د هغوی بړغ گونگ کړو، د دې پر ځای چې اولادونه مو د غربي رسنیو برنامو مینوال وي، باید هغوی مساجدو او مدارسو ته سوق کړو؛ ځکه همدا مدرسې دي چې ۱۴ سوه کاله یې زموږ د تاریخ، عقیدې او فکر په ژغورلو کې د زغرو په څېر رول لوبولئ.

اوس چې کافره نړۍ له مختلفو لارو په هر قیمت کوښښ کوي تر څو موږ او إسلامي فکر سره بېل کړي، په داسې یوه وخت کې که قلموال د خپلو قلمونو په لیک، واعظین په خپلو ویناوو او سپین روږي په خپلو کلیوالي مجلسونو کې د إسلامي فکر ترویج او رشد ته توجه وکړي یو خو به زموږ ځوانان نور هم د إسلامي فکر په گانه ښکلي شي،

له بلې خوا به غرب د مایوسۍ پر تغر کښېني او د کلونو کلونو هڅې به یې په ډېره اسانۍ سره په اوبو لاهو شي.

و ما ذلک علی الله بعزیز.

# جمهوریت که د غلو او مفسدینو اچار؟

نورالحق څلی

د روان اشغال د ټولو اردلیانو لکه کرزي، غني، عبدالله، غلسالارانو، جنگسالارانو، اپین سالارانو، جهادي مشرانو، چوشکیانو او د دوی د انډیوالانو گډ شرکت ته ټول شموله حکومت وايي. په بله وینا دا د هغو کسانو گډ شرکت دی، چې د افغان ولس په رېړولو او لوټلو کې هېڅکله ستومانه نشول. دغه ښاغلي له آسمان څخه نه دي رالوېدلي، هسې روان اشغال له بېلابېلو سوړو څخه راوایستل او پر خپلو برېښنایي زینو او په لفتونو کې یې دغو مقامونو ته وخېژول.

دا داسې یو شرکت دی چې ونډه لرونکو یې هر ورځ د افغانستان اساسي قانون له سهاره تر ماښامه پورې تر پښو لاندې کړی دی. د دې شرکت د غړو ونډې او واکونه د دوی د بادار امریکا له خوا ټاکل کېږي. د شرکت مشري به دا ځل د یوه »سرغل «له خوا نه، د څو غلو له خوا په گډه کېږي.

د شرکت د ونډو لرونکو دندې د وروستیو نولسو کلونو د لاسته راوړنو لکه: فساد، چور، غصب، وژنې، غلاوې، د ملي ارزښتونو او ملي بنسټونو بې اعتبارول غځول او جاري ساتل وي. سر بېره پر دې باید پر خلکو باندې درد او سپکاوی هم ومني، ځکه اصلي ځواک همدا دی. یوازې د خلکو غاړه ایښودنه بسنه نه کوي. پرته د خلکو له کړاو څخه، ته څرنگه ډاډمن کېدای شې، چې خلک نه خپلې ارادې ته، بلکې ستا ارادې ته غاړه ږدي؟

د چارو د ښه سمون لپاره د شرکت جگپوړي ونډه لرونکي کولی شي یو شمېر نوي سیاسي خیاطان وگماري. دا ځل به د فعالو او نوښتگرو سیاسي خیاطانو، امتیازات د نورو په پرتله، لږ تر لږه سل" ویتامین دالره "ډېر وي.

که غواړئ د دغه ټول شموله حکومت د میراث په اړه څه واورئ، په ډېر درد سره باید ووایو، چې دغه آفت د کرونا له وبا څخه سل ځله بد دی. دغه ټول شموله حکومت به د هغه څه د تر لاسه کولو لپاره هلې ځلې وکړي چې د »ملي آفت حکومت «په کې پاتې راغی. حکومت به د ولس او هېواد لپاره یومخ وژنې او ورانۍ وهڅوي، ان زمونږ پایښت ته گواښ دی. یو څه څرگند دي او هغه دا چې د دغه ټول شمول حکومت د سر سړي به هرو مرو د هدیرو ډېر شتمن کسان وي.




له هیواد څخه (د بهرنیو ځواکونو د ترجمانانو) د وتلو په اړه

# د اسلامي امارت اعلامیه

دا چې په تیر شل کلن اشغالي دور کې ډیر شمیر افغانان تیروتل او د بهرنیو ځواکونو په ځنک کې یې د ترجمانانو، ساتونکو او نورو عنوانونو لاندې وخت تیر کړ، اوس چې بهرني ځواکونه له افغانستان څخه وځي، دغه افغانان هم غواړي چې له هیواد څخه تیښته وکړي او ویره لري.

یادو ټولو کسانو ته د اسلامي امارت لخوا خبر ورکول کیږي چې هغوی باید ټول پخپلو تیرو کړنو باندې پیښمانه واوسي، او د راتلونکي لپاره بیا داسې لاره غوره نه کړي چې هغه د اسلام او هیواد سره خیانت بلل کیږي.

خو اوس دې هیڅوک هم له هیواد څخه تیښته نه کوي، اسلامي امارت په هغوی کار نه لري، بلکې بلنه ورکوي چې خپل عادي ژوند ته را وګرزي او که په کومه برخه کې تخصص لري، د خپل هیواد خدمت وکړي، زموږ لخوا ورته کوم ډول خطر متوجه نه دی.

موږ هغه مهال هغوی خپل دښمنان بلل چې مخامخ زموږ د دښمن په صف کې ولاړ وو، خو کله چې هغوی د دښمن له صف څخه را ووزي او د یوه عادي افغان په حیث په خپل هیواد کې ژوند کول غواړي، نو هیڅ ستونزه ورته نشته باید ویره ونه لري او پخپل هیواد کې ارام ژوند ته ادامه ورکړي او که څوک هسې ځان ته خطر بهانه کوي او خارج ته د تګ لپاره په جعلي ډول کیس جوړوي دا د هغوی خپله ستونزه ده نه د اسلامي امارت د مجاهدینو.

د افغانستان اسلامي امارت

۲۶/ ۱۰/ ۱۴۴۲هـ ق

۱۴۰۰/ ۳/ ۱۷هـ ش ـــ ۷/ ۶/ ۲۰۲۱م

Srak Magazine

داسلامي امارت دزعيم عاليقدر اميرالمؤمنين شيخ الحديث

## مولوي هبة الله اخندزاده حفظہ اللہ له ويناوو څخه

مجاهدينو ورونو ! له خپل ولس سره له نيک او نرم چلند څخه کار واخلئ، دا ملت ډير ستړی شوی او ځوريدلی دی، د زيات ترحم اوشفقت وړ دی، په هيڅ ځای کې هم ظلم او زياتی درڅخه ونه شي، که له تاسو سره چا ظلم او زياتی هم کړی وي، د الله تعالی درضا لپاره يې تحمل او هير کړئ، په خپل هيواد کې د سولې، امن او يووالي لپاره بايد لا ډير زغم اوحوصله ولرو.

همدا راز د بريا اوفتح په درشل کې غرور او لويي درڅخه ونه شي، بلکې لازمه ده چې د الله جل جلاله شکر أدا کړو لا ډيره رجوع ورته وکړو اونور هم د الله تعالی څخه نصرت وغواړو او لا ډير توکل پرې ولرو.

